


**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د
روزنې او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست



# پښتو

## اتم ټولګی



پښتو

اتم ټولګی

درسي کتابونه د پوهنې په وزارت پورې اړه لري په بازار کې يې
اخیستنه او خرڅونه په کلکه منع ده. له سر غړونکو سره قانوني
چلن کیږي.


ISBN 978-9936-25-041-3

د چاپ کال: ۱۳۹۰ هـ . ش.




**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د
روزنې او د ساینس د مرکز معینیت
د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي
کتابونو د تالیف لوی ریاست

# پښـــتو

## اتم ټولګی

د چاپ کال: ۱۳۹۰ هـ.ش.





**مؤلفین**:

څېړندوی عبدالقیوم زاهد مشوانی، بریالی باجوړی، حضرت‌گل ارچیوال، اقا محمد گړندی او محقق حکیم تنیوال.

**ایډیټران**:

محمد زرین انځور، پوهنمل بریالی باجوړی

**دیني، سیاسي او فرهنګي کمېټه**:

- مولوي عبدالصبور عربي
- دکتور محمد یوسف نیازی
- حبیب الله راحل د پوهنې وزارت سلاکار د تعلیمي نصاب د پراختیا په ریاست کې.

**د څارنې کمېټه**:

ـ دکتور اسدالله محقق د تعلیمي نصاب د پراختیا، د ښوونکو د روزنې او د ساینس مرکز معین.
ـ دکتور شېرعلي ظریفي د تعلیمي نصاب د پراختیا د پروژې مسؤول.
ـ د سرمؤلف مرستیال عبدالظاهر ګلستاني د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی رئیس.

**کمپوز او ډیزاین**: صفت الله مومند







# ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی — دا عزت د هـــر افـــغان دی

کور د سولې کور د تورې — هر بچی یې قهرمـــــان دی

دا وطن د ټولو کـور دی — د بـــــلوڅــــو د ازبکـــو

د پښتـــون او هزاره وو — د تـــــرکمنـــو د تاجکـــو

ورسره عرب، گوجـر دي — پـــاميـريان، نورستانيـــان

براهوي دي، قزلباش دي — هـــم ايمـــاق، هم پشه یان

دا هيـــواد به تل ځلیږي — لـــکـــه لمـــر پر شنه اسمـان

په سينـــه کې د اسيـــا به — لـــکـــه زړه وي جـــاويدان

نوم د حق مو دی رهبـــر — وايو الله اکبر وايو الله اکبر





بسم الله الرحمن الرحيم

## د پوهنې د وزير پېغام

### گرانو ښوونکو او زده کوونکو،

ښوونه او روزنه د هر هېواد د پراختيا او پرمختگ بنسټ جوړوي. تعليمي نصاب د ښوونې او روزنې مهم توکی دی چې د معاصر علمي پرمختگ او ټولنې د اړتياوو له مخې رامنځته کېږي. څرگنده ده چې علمي پرمختگ او ټولنيزې اړتياوې تل د بدلون په حال کې وي. له دې امله لازمه ده چې تعليمي نصاب هم علمي او رغنده انکشاف ومومي. البته نه ښايي چې تعليمي نصاب د سياسي بدلونونو او د اشخاصو د نظريو او هيلو تابع شي.

دا کتاب چې نن ستاسو په لاس کې دی، پر همدې ارزښتونو چمتو او ترتيب شوی دی. علمي گټورې موضوعگانې پکې زياتې شوې دي. د زده کړې په بهير کې د زده کوونکو فعال ساتل د تدريسي پلان برخه گرځېدلې ده.

هيله من يم دا کتاب له لارښوونو او تعليمي پلان سره سم د فعالې زده کړې د ميتودونو د کارولو له لارې تدريس شي او د زده کوونکو ميندې او پلرونه هم د خپلو لوڼو او زامنو په باکيفيته ښوونه او روزنه کې پرله پسې گډه مرسته وکړي چې د پوهنې د نظام هيلې ترسره شي او زده کوونکو او هېواد ته ښې برياوې ور په برخه کړي.

پر دې ټکي پوره باور لرم چې زموږ گران ښوونکي د تعليمي نصاب په رغنده پلي کولو کې خپل مسؤوليت په ريښتوني توگه سرته رسوي.

د پوهنې وزارت تل زيار کاږي چې د پوهنې تعليمي نصاب د اسلام د سپېڅلي دين له بنسټونو، دوطن دوستۍ د پاک حس په ساتلو او علمي معيارونو سره سم د ټولنې د څرگندو اړتياوو له مخې پراختيا ومومي.

په دې ډگر کې د هېواد له ټولو علمي شخصيتونو، د ښوونې او روزنې له پوهانو او د زده کوونکو له ميندو او پلرونو څخه هيله لرم چې د خپلو نظريو او رغنده وړانديزونو له لارې زموږ له مؤلفانو سره د درسي کتابونو په لا ښه تاليف کې مرسته وکړي.

له ټولو هغو پوهانو څخه چې د دې کتاب په چمتو کولو او ترتيب کې يې مرسته کړې، له ملي او نړيوالو درنو مؤسسو او نورو دوستو هېوادونو څخه چې د نوي تعليمي نصاب په چمتو کولو او تدوين او د درسي کتابونو په چاپ او وېش کې يې مرسته کړې ده، مننه او درناوی کوم.

ومن الله التوفيق

فاروق وردگ

د افغانستان د اسلامي جمهوريت د پوهنې وزير





# لیک لړ







## لومړی لوست

# لويه خدايه، لويه خدايه!



د ښېښ نيکه پر دې مناجات د کتاب لومړی لوست پيلوو. د ټولو چارو واک د لوی خدای ﷻ په لاس کې دی. بنده بايد تل له خدای ﷻ مرسته وغواړي. الله ﷻ ته مناجات او زاري د بري او نېکمرغۍ لامل ګرځي.

- مناجات څه ته وايي او موضوع يې څه وي؟
- تاسو ښېښ نيکه پېژنئ او د هغه مناجات مو اورېدلي دي؟
- د ښېښ نيکه دغه دعا يا مناجات له نورو حمدونو څخه څه توپير لري؟

لويه خدايه، لويه خدايه!
ستا په مينه په هر ځايه
غر و لاړ دي درناوي کې
توله ژوي په زاري کې
دلته دي د غرو لمنې
زمونږ کېږدۍ دي پکې پلنې
دا وګړي ډېر کړي خدايه!
لويه خدايه، لويه خدايه!

دلته لږ زمونږ اوربل دی
ووړ کوږ کی دی، ووړ بورجل دی
مينه ستا کې مونږ مېشته يو
بل د چا په مله تله نه يو
هسک او ځمکه نغښته ستا ده
د مړو وده له تا ده
دا پالنه ستا ده خدايه!
لويه خدايه، لويه خدايه!

(بېټ نيکه)



## د متن لنډیز:

بیټ نیکه په خپل دغه مناجات کې د لوی خدای ﷻ دربار ته د دعا لاسونه پورته کوي او داسې هیله کوي: زموږ زړونه یوازې او یوازې ستا له مینې ډک دي او د بل چا په پله نه یو روان، زموږ په ولس ورحمېږې. دوی را ډېر کړه، ځکه چې هسک او ځمکه ستا دي او د هر څه وده او پالنه ستا له لورې ده.

## د شاعر پېژندګلوي:

بیټ نیکه زموږ له نومیالیو نیکونو څخه دی. ژوند یې د ۳۰۰ او ۴۰۰ هـ. ق. کلونو تر منځ اټکل شوی دی. تر ټولو پخوانی کتاب چې د بیټ نیکه په اړه موږ ته معلومات راکوي، د سلېمان ماکو ((تذکرة الاولیاء)) دی. د تذکرة الاولیاء کتاب تر ۶۱۲ هـ. ق. راوروسته لیکل شوی دی.

وایي چې بیټ نیکه د کسي (سلېمان) غره په لمنو کې اوسېده او تل به د خدای ﷻ پر عبادت بوخت و. هغه د خپلې قبیلې مشر، روحاني شخص او مشهور ولي و. دغه راز بیټ نیکه شاعر هم و.





## فعالیتونه

۱ـ تر ښوونکي وروسته دې څو زده کوونکي په وارسره مناجات د ټولګیوالو په وړاندې ولولي.

۲ـ څو زده کوونکي دې د دغه مناجات د مفهوم په اړه خبرې وکړي.

۳ـ هر زده کوونکی دې په مناجات کې صفتونه په نښه او په ټولګي کې دې یې په لوړ اواز ووایي.

۴ـ په پورتني مناجات کې نومونه په نښه کړئ او ووایاست چې څو ډوله نومونه مو پیدا کړل؟

۵ـ په ساده ډول د حمد، مناجات او نعت توپیر په څو کرښو کې ولیکئ او خپلو ټولګیوالو ته یې واوروئ.

۶ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي.

درناوي، ژوي، بورجل، مېشت، نغښته، پالنه

۷ـ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې ګران لغتونه په جملو کې استعمال کړي.



## کورنۍ دنده

شاګردان دې په کور کې د دې درس اصلي مطلب پخپلو کتابچو کې ولیکي.



په تاسو کې هغه څوک غوره دی چې د هغه د لاس او ژبې له ضرر څخه بل مسلمان په امان وي.

((حدیث شریف))





# نعت



تاسې په لومړي لوست کې مناجات ولوست. مناجات هغې وینا ته ویل کېږي چې په هغه کې د خدای ﷻ له درباره د څه غوښتنې او دعا لاسونه پورته کېږي. اوس تاسې نعت لولئ، په نعتیه شعرونو کې د نبي (علیه السلام) صفت او ستاینه کېږي.

مناجات او نعت زیاتره منظوم وي، خو کله کله منثور هم وي.

نعت څه ته وايي؟

- تاسې کوم نعتیه کلام اورېدلی یا لوستلی دی له مناجات سره څه توپیر لري؟
- ایا مناجات او نعت منثور هم وي؟

بنیادمو کې دې نشته دی همسر څوک
پرېښتو کې دې هم نه دی برابر څوک
د معراج په شپه جبریل هم پاتې راغی
کله تلی شي هم کا به د افسر څوک
سپوږمۍ هم ورته حیرانه دوه ټوکړې شوه
اشارې نه د نبي دی ناخبر څوک
لات، منات، عزا[1] همه خاورې په سر شول
اخیستلی شي له حق سره ټکر څوک
ابوجهل[2]، بولهب[3] ټول خوار و زار شول
څنګه کړي مقابله د پیغمبر څوک
ستا صفت د لویې څوک پوره کوی شي
احاطه به د برېښنا وکړي د لمر څوک
د اسرې ځای مو هم ته یې محمده ﷺ
زموږ مه شه په دنیا کې بل رهبر څوک
خپل پردي ورته په عدل کې یو شان وو
ثاني نشته د عادل خیرالبشر[4] څوک

(لنګر بي بي)

لنګر بي بي د پښتونخوا د اشنغر د سیمې شاعره ده. د نوموړې شاعرې په اړه په ادبي تذکرو کې ډېر معلومات نشته. د فقیر محمد عباس قادریه په (خوارږه نعتونه) نومې کتاب کې یې ځینې نعتونه راغلي دي. موږ هم پورتنی نعت له دغه کتاب څخه اخیستی دی.

**د متن لنډيز:**

په پورتني نعت کې دا څرګنده شوې ده چې حضرت محمد ﷺ د الله ﷻ تر ټولو غوره بنده او استازی دی. حضرت محمد ﷺ تر ټولو وروستنی پیغمبر دی، د نبوت لړۍ پرې ختمه ده. الله ﷻ د هغه د نبوت د پخلي لپاره له هغه څخه ځینې معجزې صادرې کړې. لومړنۍ معجزه يې دا وه چې د رسول الله ﷺ له زوکړې سره سم د کفارو ستر بتان لکه: لات، منات، عزا او نور پر ځمکه را پرېوتل.

د معراج په شپه رسول الله ﷺ د جبرایل (ع) په ملګرتیا له مسجد اقصیٰ څخه د الله ﷻ په امر اسمانونو ته وخوت او له الله ﷻ سره يې خبرې وکړې. همدارنګه په کوچنيوالي کې د هغه د مبارکې سینې څیرل او د هغې پرېمنځل هم يوه معجزه وه.

د رسول الله ﷺ بله معجزه دا وه چې سپوږمۍ د هغه په امر دوه ټوټې شوه او بېرته سره يو ځای شوه. په نعت کې د رسول الله ﷺ ستاينه او صفت راغلی او د هغه مقام څرګند شوی دی.



## څرګندوني

۱- لات، منات، عزا: دغه درې مشهور بتان وو چې کفارو به ورته سجدې کولې.

۲- ابو جهل: د نبي(علیه السلام) سر سخت مخالف و چې تر مرګه مسلمان نه شو.

۳- ابولهب: دا هم د نبي (علیه السلام) سخت مخالف، او د اسلام دښمن و.

۴- خیرالبشر: تر ټولو انسانانو غوره (حضرت محمد ﷺ)




۱- زده کوونکي دې شعر په وارسره ولولي او د دې نعت مفهوم دې په خپلو خبرو کې ووايي.

۲- زده کوونکي دې لاندې بیتونه معنا کړي او ودې وايي چې په دغو بیتونو کې کومو پیښو ته اشاره شوې ده.

د معراج په شپه جبریل هم پاتې راغی
کله تلی شي هم رکابه د افسر څوک
سپوږمۍ هم ورته حیرانه دوه ټوکړې شوه
اشارې نه د نبي دی نا خبر څوک

۳- زده کوونکي دې په شعر کې نومونه پیداکړي او څرګنده دې کړي چې په شعر کې کوم ډول نومونه راغلي دي.

۴- زده کوونکي دې د دې کتاب له ویپانګې (لغتنامې) څخه د دې لغتونو معنا پیدا او بیا دې یې په جملو کې استعمال کړي: معراج، افسر، احاطه، همسر.




زده کوونکي دې د حضرت محمد ﷺ د ستاینو په اړه په شپږو کرښو کې یوه لیکنه وکړي.











# خپلواکي



خپلواکي او ازادي د خدایﷻ یو لوی نعمت دی، د ژوندانه یوه ستره نېکمرغي ده. انسان ازاد پیدا شوی او له ازادۍ سره مینه لري.
انسان ته خپلواک ژوند له هر څه نه غوره ښکاري. د خپلواکۍ یو ساعت د بلواکۍ له ټول عمر نه غوره دی. خپلواکي او د خپلواکۍ ساتل د هر ملت د ژوندانه یو بنیادي توکی دی. ازادي په توره اخیستل کېږي او په پوهه او تدبیر ساتل کېږي.
لکه چې خوشحال بابا ویلي دي:

ازادي تر پاچاهیه لا تېرې کا
چې د بل تر حکم لاندې شي زندان شي

- خپلواکي څه ته وایي؟
- افغان ولس څنګه له انګرېزانو څخه خپله خپلواکي ترلاسه کړه؟
- دکوم پاچا په وخت او په کوم کال کې د افغانستان خپلواکي اعلان شوه؟

د انګرېزانو تر یرغل وروسته هم افغانستان یو اشغال شوی هېواد نه و. له یرغل سره سم افغانانو د خپلواکۍ لپاره سربښندونکې مبارزې پیل کړې. له انګرېزانو سره یې درې لویې جګړې وکړې او هیڅکله یې د هغوی ښکېلاک ته غاړه کښېښنبوده.

په ۱۲۹۸ هـ . ش . کال کې افغانانو د غازي امان الله خان په مشرۍ خپله سیاسي خپلواکي اعلان کړه او له اوږدو جګړو او بیا خبرو اترو وروسته انګرېزانو هم د افغانستان خپلواکي په رسمیت وپېژندله.



افغانستان په ختیځ کې لومړنی هېواد و چې د نړۍ د هغه وخت له زبر ځواک (ستر قوت) یا انګرېزانو څخه یې د ډېرو سربښندنو په بدله کې خپلواکي تر لاسه کړه. افغانان د ختیځ د ډېرو هېوادونو او ولسونو لپاره د ازادۍ د اتلانو په توګه وپېژندل شول او د ازادۍ غوښتنې ولولې یې نورو ته هم ورورسولې.

خپلواکي د یو هېواد د خلکو حق دی، خو دغه حق باید پخپله ولسونه خپل کړي.





افغانانو له نېکه مرغه د خپل ټول تاریخ په اوږدو کې د دغه حق لپاره مبارزې کړې دي او تر لاسه کړی یې دی.

د بلواکۍ پر ضد مبارزه د انسان په خټه کې اغږل شوې ده. د وطن احساس، د خپلواکۍ احساس او د ازاد ژوند احساس زموږ د ولس له سترو ښېګڼو څخه دی. نومیالی شاعر او لیکوال ګل پاچا الفت څه ښه وایي:

یو پټ غلی احساس دی چې ارام مې نه پرېږدي
په اور مې کړوي لکه چې خام مې نه پرېږدي
جرات مې زیاتوي دومره په ځان یمه پوه شوی
غافل له خپله حقه او غلام مې نه پرېږدي

زموږ ډېرو شاعرانو د خپلواکۍ په ارزښت او د ازاد ژوند په ستاینه کې شعرونه او نظمونه ویلي دي. په دغو شعرونو کې که له یوې خوا د خپلواکۍ ارزښتونه څرګند شوي دي، له بله پلوه دافغانانو هغو اوږدو مبارزو او سرښندنو ته هم درناوی شوی دی چې په بېلا بېلو دورو کې یې د یرغلګرو او ښکېلاکګرو په وړاندې کړې دي.

فضل احمد خان غر افغان وایي:

واورئ ای په مخ د ځمکې اوسېدونکو
له اسمانه چې اواز راځي د څه دی
د ازاد ژوند یو ساعت په حقیقت کې
د غلام د همېشه ژوندون نه ښه دی

د نومیالي لیکوال او شاعر شهید محمد موسیٰ شفیق د یو اوږد شعر څو برخې په دې ډول دي:

زه د ازادۍ د شمعې اورته پروانه یمه
زده یمه تاریخ ته خوندوره افسانه یمه
تل د سمندر د زمانې کې دردانه یمه
موج مې جذبې وهي یو سیند بې کرانه یمه

تېر یمه له سرنه په ناموس او ننگ فدا یمه
داغ د ازادۍ نه کوم کړکه ازاد پا یمه
زه هغه غازي يم چې څو ځله شهيد شوی يم
بيا يم پيدا شوی که کوم ځلې فقيد شوی يم
موږ سره تړلي د يووالي په زنځير يو ټول
يو د خپلې خاورې په تنظيم او په تدبير يو ټول
عشق د خپلواکۍ مې په سينه کې په هاها وي تل
پاك مې احساسات دي ازادي مې تمنا وي تل
خير د بشر غواړم امنيت مې تقاضا وي تل
ماسره چې نښلي بدبختي د هغه چا وي تل

ربښتيني ازاد او ويښ ملتونه هغه دي چې د خپلواکۍ له ترلاسه کولو وروسته د خپل هېواد د جوړونې، بيا رغاونې، پرمختگ او د خپل ژوندانه د هوساينې لپاره نه ستړې کېدونکې هڅې او هلې ځلې وکړي، ځکه ربښتينې خپلواکي دا ده چې يو ملت په مذهبي، سياسي، اقتصادي، کلتوري او نورو ډگرونو کې پر ځان متکي وي.

د خپل ژوندانه د هوساينې لپاره پخپله کار وکړي، نورو ته د تمې سترگې ونه نيسي، د ځان، هېوادوالو او هېواد د روا حقونو څخه د دفاع توان ولري.

دا کارونه هغه وخت کېدای شي چې د ملت ټول وگړي سره متحد او يو موټی وي. يو پر بل لورېنه ولري، يو د بل په غم غمجن او په خوښۍ يې خوښ شي. ملي گټې پر شخصي گټو غوره وگڼي يعنې که هغه ته زيان او تاوان رسېږي هغه پر ځان ومني، خو د هېواد او هېوادوالو گټو ته زيان ونه رسوي.





**د متن لنډيز:**

خپلواکي او ازادي د خدایﷻ یو لوی نعمت دی، د ژوندانه یوه ستره نېکمرغي ده. هر څوک د ازادۍ حق لري.

افغانانو د خپلواکۍ د بېرته اخیستلو په مبارزه کې له انګرېزانو سره درې لويې جګړې وکړې او په ۱۲۹۸ هـ . ش. کې یې د غازي امان الله خان د واکمنۍ په دوره کې خپله سیاسي خپلواکي بېرته تر لاسه کړه.

خپلواکي په ملي یووالي او د ژوندانه په ټولو ډګرونو کې په زیارګالنې سره ساتل کېږي. په ځانګړي ډول په اقتصادي ډګر کې باید یو ملت دومره زیار وباسي چې نورو ته د تمې لاس وراوږد نه کړي، ځکه تمه ده چې له خپلواکو ملتونو څخه هم مړیان جوړوي.




ختيځ: په دې متن کې له ختیځ څخه موخه هغه سیمې او هېوادونه دي چې د نړۍ په ختیځه برخه کې پراته دي، لکه: د هند لویه نیمه وچه، جاپان، ایران د منځنۍ اسیا هېوادونه او نور...

زبرځواک: په ځانګړو وختونو کې ځینې هېوادونه له اقتصادي، سیاسي او پوځي پلوه د نړۍ تر نورو ټولو هېوادونو ډېر پیاوړي وي. دغو پیاوړو هېوادونو ته د خپل وخت زبرځواک یعنې ستر قوت وايي، لکه په ۱۸ مه او ۱۹ مه پېړۍ کې لویه بریتانیا (انګلستان)، یا له دویمې نړیوالې جګړې مخکې جرمني.






۱_ زده‌کوونکي دې له ښوونکي څخه وروسته د متن ځینې برخې وار په وار ولولي او د ازادۍ پر مفهوم دې ټولګیوالو ته خبرې وکړي.

۲_ زده‌کوونکي دې په متن کې د راغلو شعرونو معنا پخپلو کتابچو کې ولیکي او په ټولګي کې دې یې واوروي. هر زده‌کوونکی دې د یو، یو شاعر شعر په پام کې ولري، خو د شاعرانو د شعرونو وېش به د ښوونکي له خوا کېږي.

۳_ زده‌کوونکي دې د (الف) بکس د لغتونو مترادف په (ب) بکس کې پیداکړي.

| (الف) | (ب) |
| --- | --- |
| خپلواکي | غلام |
| ابادي | ازادي |
| بلواکي | غلامي |
| قرباني | سربښندنه |
| مریی | رغاونه |

۴_ افغانانو ولې درې ځلې له انګرېزانو سره جګړې وکړې؟

۵_ په متن کې ستاینومونه (صفتونه) په نښه کړئ.

۶_ د خپلواکو او ناخپلواکو ملتونو د حال په اړه خپل نظر څرګند کړئ.

۷_ زده‌کوونکي دې د ازادۍ په اړه د کوم بل شاعر نثر او یا پښتو لنډۍ په ټولګي کې ووایي.




د خپلواکۍ د جګړې په اړه یو په زړه پورې مطلب ولیکئ او بلې ورځې ته یې په ټولګي کې واوروئ.









# د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه عدالت



د رسول الله ﷺ تر رحلت وروسته د راشدینو خلیفه ګانو دوره وه. لومړی خلیفه حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه، دویم حضرت عمر فاروق رضي الله عنه، دریم حضرت عثمان رضي الله عنه او څلورم حضرت علي (کرم الله وجهه) و. دغه څلور واړه د رسول الله ﷺ د یارانو په نامه شهرت لري. په دې څلور واړو خلیفه ګانو کې هر یو د یوې ځانګړنې له مخې ځانګړې شهرت لري.

حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د خلافت د چارو د ښې سنبالتیا او عدالت له امله ډېر مشهور دی چې تر اوسه یې نړۍ بل ساری نه دی لیدلی.

- عدالت څه ته وايي؟
- که د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د عدالت یوه لنډه کیسه مو زده وي ویې وایاست.

د جهالت په دوره کې چې د عربو د ژوندانه هر ډګر ناپوهۍ او باطل پرستۍ نیولی و، ژوندۍ نجونې پکې ښخېدې، بتانو ته سجدې کېدې، غلاګانې، شوکې او قتلونه کېدل، د اسلام راتګ داسې یوه معجزه وکړه چې دغه خلک یې په ډېره لږه موده کې داسې سره متحد کړل چې د دنیا لوی لوی سلطنتونه یې د بیرغ په وړاندې سلامي شول.

څه دپاسه ۱۴ سوه کاله دمخه د عربستان په وچو شګلنو دښتو کې یو منظم او غښتلی امت جوړ شو په لږه موده کې یې د هغې زمانې سترو او ځواکمنو باطل پرستو سلطنتونو ته ماتې ورکړه. په شام، روم، فارس، افریقا، اروپا او د چین په ځینو ځایونو کې یې د توحید او حق پرستۍ رڼا خپره کړه. د عدل، انصاف او ازادۍ داسې یو نظام یې پکې پلی کړ چې دا نن یې هم په نړۍ کې ساری نه لیدل کېږي.

دا ټولې برياوې د اسلام د پیغمبر حضرت محمد ﷺ د تعلیماتو او د هغه مبارک د یارانو او اصحابو د ایماندارۍ، صداقت، زیار او کوښښ له برکته د مسلمانانو په برخه شوې وې.

د رسول الله ﷺ یاران او اصحاب د اسلامیت او انسانیت غوره بېلګې او مثالونه دي. دوی نه یوازې د اسلام بلکې د انسانیت په تاریخ کې لوړ مقام لري. د نړۍ زیاتره پوهان، عالمان، فیلسوفان یا په بله وینا د علم او عقل خاوندان او حقیقت منونکي په دغه حقیقت اعتراف کوي.

نن هم که موږ مسلمانان د الله ﷻ په احکامو، د حضرت محمد ﷺ په لارښوونو او د اصحابو کرامو په کړنو عمل وکړو، نو ډېر ژر به وکولای شو چې د اسلام هغه پخوانی شان او شوکت یو ځل بیا راژوندی کړو.

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه د خطاب زوی او د رسول الله ﷺ د لویو اصحابو له ډلې څخه و.

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه ته د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه تر وفات وروسته په (۱۳ هـ. ق. کال) کې د خلافت واګې وروسپارل شوې.





د حضرت عمرؓ د خلافت په وخت کې ډېر فتوحات وشول. ډېرې سیمې د اسلامي خلافت په واک کې راغلې. د ده په وخت کې د اسلامي خلافت په سیمو کې ډېر امن و امان و او وګړو په ډاډ سره ژوند کاوه. لامل (سبب) یې د حضرت عمر فاروق ؓسیاست، تدبیر او عدالت و. حضرت عمر فاروق ؓ د اسلامي حکومت ستنې (چې حضرت محمد ﷺ ودرولې وې) داسې ټینګې کړې چې لړزېدل یې ناشوني وو. د اسلامي عدل پر بنسټ یې د خلافت چارې داسې تنظیم کړې چې د نړۍ هیڅ یو نظام ورسره سیالي نه شوه کولای.

حضرت عمر فاروق ؓ د خپل خلافت په ټوله موده کې د یوه وېښته هومره هم له عدالته تېرى ونه کړ. شتمن او غریبان، چارواکي او ولسي وګړي هغه ته د عدل او انصاف په بهیر کې یو شان وو.

حضرت عمر فاروقؓ یو ځل د حج په ورځو کې ټول چارواکي راوغوښتل، په عامه غونډه کې ودرېد او ویې ویل: که څوک له دوی څخه شکایت لري ودې یې وایي.

په دې غونډه کې د مصر والي عمروبن عاص ؓ او نور لوی لوی چارواکي هم حاضر وو. یو کس ودرېد او ویې ویل: فلاني حاکم پرته له کوم جرمه سل درې ووهلم.

حضرت عمر فاروق ؓ وویل: پاڅېږه او خپل کسات ترې واخله!

حضرت عمروبن عاص ؓ وویل: ای امیرالمؤمنینه! په دې کار سره به ټول حاکمان بې زړه شي. حضرت عمر فاروق وویل: له دې پرته بله لاره نشته او عارض ته یې بیا وویل: راولاړ شه او خپل کسات ترې واخله! عمروبن عاص د عارض څنګ ته ورغی او هغه یې په دې راضي کړ چې سل دیناره واخلي او له دعوې تېر شي.

یوه ورځ د قریشو مشران د حضرت عمر فاورقؓ د لیدلو لپاره راغلل، صهیب، بلال، عمارؓ او نور کسان لا د مخه حاضر وو چې زیاتره یې ازاد شوي مریان وو. نوبت یې د مخه و، نو حضرت عمر فاروقؓ لومړی ازاد شوي مریان خپل حضور ته ومنل او د قریشو مشران منتظر پاتې شول.

ابوسفیان چې د جهالت په وخت کې د خپلې قبیلې مشر و، دا کار ورته ښه ونه

ایسېده. ویې ویل: سبحان الله! مربانو د خلافت له دربار اجازه ومونده او موږ انتظار باسو. د یو شمېر نورو کسانو چې د ابوسفیان همفکره و، دا کار خوښ نه شو، خو یو شمېر نورو د عدالت راز پېژندونکو وویل: موږ باید له حضرت عمر فاروق رضي الله عنه څخه شکایت ونه کړو، اسلام ټولو ته په یوه اواز بلنه ورکړه، څوک چې د خپلې بدمرغۍ له امله وروسته پاتې شول، نن هم باید وروسته پاتې شي.

د قادسیې له جګړې وروسته چې معاشونه ټاکل کېدل، ټول قبیلوي امتیازات یې له پامه وغورځول او یوازې اسلامي ورتیاوې یې په پام کې ونیولې، د اُسامه بن زید معاش یې د خپل زوی عبدالله تر معاش زیات وټاکه. عبدالله وویل: والله اُسامه په هیڅ جنګ کې تر ما نه دی مخکې شوی. حضرت عمر فاروق رضي الله عنه وویل: مګر هغه پر رسول الله ﷺ تر تا ډېر ګران و.

یو ځل د غنیمت مال راغی. اُم المؤمنین حضرت حفصه(رضی الله عنها) چې د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه لور او د رسول الله ﷺ بي بي وه، خپل پلار ته ورغله او ویې ویل: څه چې زما حق وي رایې کړه! حضرت عمر فاروق رضي الله عنه وویل: لورجانې! ته زما په ځانګړي مال کې حق لرې، دا د غنیمت مال دی، ایا ته غواړې چې پلار دې تېری وکړي؟!

حضرت حفصه(رضی الله عنها) حیرانه شوه، له ځایه پاڅېده او لاړه.

د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه په دوره کې د خلافت در بار ته د نژدې کېدو معیار یوازې عدالت او رښتینولي وه. وایي چې یوه ورځ عمر فاروق رضي الله عنه د خپل خلافت په دوره کې د شپې ګرځېده چې د خلکو له احواله ځان خبر کړي. ستړی شو؛ یوه دېوال ته یې ډډه ولګوله، د انګړ دننه د یوې ښځې او نجلۍ خبرې اورېدل کېدې. ښځې نجلۍ ته وویل: لورې په شېدو کې اوبه واچوه.

لور یې وویل: ولې ته د امیرالمؤمنین له حکمه نه یې خبره چې هغه په دې کار بندېز لګولی دی.

مور یې بیا ټینګار وکړ: پاڅېږه او په شېدو کې اوبه ګډې کړه، نه مو خلیفه ویني او نه د هغه کوم عسکر.





لور يې وويل: که خليفه مو نه ويني، نو الله خو مو ويني، زه دا کار هيڅ کله نشم کولای چې مخامخ دې د هغه خبره ومنم او په پټه دې د هغه د خبرې خلاف کار وکړم.

په همدې سوال ځواب دا نجلۍ عمر فاروق ته ډېره سپېڅلې ښکاره شوه، نو خپل زوی عاصم ته يې په نکاح کړه. له دې سپېڅلې نجلۍ چې کومه لور وزېږېده، ام عاصم يې وبلله. ام عاصم د خليفه مروان زوی عبدالعزيز په نکاح کړه او عمر بن عبدالعزيز ترې وزېږېد، هغه څوک چې يو ځل بيا يې د خپل نيکه حضرت عمر فاروق د عدالت بېلګه نړۍ ته وړاندې کړه.

د متن لنډيز:

حضرت عمر فاروق ﷺ داسې عادل خليفه و چې د څوارلس سوو کالو په اوږدو کې د هغه په څېر بل عادل خليفه پيدانشو. د هغه په خلافت کې ټول انسانان له خپلو روا حقونو څخه برخمن وو. په هيڅ ظلم او تېری نه کېده او دچا حق بل ته نه ورکول کېده. د اسلامي قوانينو په وړاندې ټول سره برابر وو.

موږ هم بايد د رسول الله ﷺ او دهغه د اصحابو په امرونو او کړنو عمل وکړو. په ټولنه کې عدالت او ربښتينولي رامنځ ته کړو او د اسلامي ورورولۍ پر بنسټ د هر چا حق په پام کې ونيسو. دبې عدالتۍ مخه ونيسو او يوه با انصافه او عادله ټولنه جوړه کړو.



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې د ښوونکي له لوستلو نه وروسته په وار سره متن ولولي او بيا دې هر يو د حضرت عمر ﷺ د عدالت په اړه خبرې وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې په متن کې راغلې پېښې په خپلو کتابچو کې وليکي او بيا دې يې په ټولګي کې واوروي.

۳ـ زده کوونکي دې د لاندې لغتونو معنا د کتاب په پای کې پيدا او په جملو کې دې يې استعمال کړي.

رحلت  خليفه  عدالت  نظام

۴ـ زده کوونکي دې د راشدينو خليفه ګانو نومونه په تاريخي ترتيب پخپلو ځايونو کې وليکي.

حضرت علي(کرم الله وجههُ)، حضرت عمر فاروق ﷺ، حضرت ابوبکر صديقﷺ، حضرت عثمان ﷺ.

۱ـ .................... ۲ـ ...................... ۳ـ .................

۴ـ .........................

۵ـ زده کوونکي دې د لاندې لغتونو ضد کلمې پيداکړي.

امن  عدل  شتمن  مربی

۶ـ زده کوونکي دې په متن کې مفرد نارينه نومونه په نښه کړي.

۷ـ حضرت عمر فاروق هغه بې وزله شېدې خرڅوونکې نجلۍ ولې خپل زوی عاصم ته په نکاح کړه؟




زده کوونکي دې په يوه ټولنه کې د عدل او انصاف پر ارزښت او اهميت د کتابچې د نيم مخ په اندازه يو مطلب وليکي.



پنځم لوست

# د ښځو حقونه



زده کوونکي باید په دې پوه شي چې ښځې زموږ د ټولنې یوه برخه ده. د اسلام له نظره او هم د اساسي او مدني قوانینو له مخې باید د ښځو حقونو ته په درنه سترګه وکتل شي.

د ښځو په مقابل کې هر ډول ناوړه سلوک او تاوتریخوالی د اسلامي قوانینو او د ټول بشریت له قوانینو او ارزښتونو سره مخالف ګڼل کېږي.

- تاسې د ښځو د حقونو په اړه څه معلومات لرئ؟
- که په ټولنه کې ښځه نه وای، نو څه به پېښ شوي وای؟

د بشر په حقونو کې د ښځو حقونو ته زیاته پاملرنه شوې ده. د نړیوالو ارزښتونو پربنسټ دولتونه مکلف دي چې د منل شویو اصولو له مخې د ښځې حقونو ته په درنه سترګه وګوري او د ژوند ټول امکانات ورته برابر کړي.

د بشري حقونو د نړیوالو تړونونو له مخې ښځې په ټولنیز او اقتصادي فعال ګډون کې له نارینه وو سره یو شان حقونه لري او په ټولنه کې له ټولو مادي او معنوي امتیازاتو څخه برخمنې کېږي.

ښځو ته د هغوی حقونه ورکول او درناوی کول، د هوسا، مترقي او خوشحاله ټولنې ضمانت کوي، ځکه چې متقابل احترام او غوره چلند د نارینه او ښځې تر منځ مینه او محبت را منځته کوي او د نېکمرغه ژوند لپاره لار هواروي.

د مدني قوانینو له مخې د ښځو د حقونو منل، هغوی ته دا امکان برابروي چې د هېواد په سیاسي چارو کې ګډون وکړي. ان تر دې چې د خپل هېواد مشران په خپله خوښه وټاکي.



ښځو ته د هغوی دحقونو د ورکولو په لړکې دا هم باید ومنل شي چې هغوی دخپلو حقونو دلاس ته راوړلو لپاره دولتي ادارو ته لار ولري او هم د ضرورت له مخې وکړای شي چې وکیل ونیسي.

خدای پاک فرمايي چې (ښځې ستاسې لباس او تاسو د هغوی لباس یاست)، د لوی خدای ﷻ له دې وینا څخه څرګندېږي چې ښځه او نارینه یو د بل لپاره د جامو حیثیت لري. څرنګه چې جامې د انسان بدن پټوي او حیا یې خوندي ساتي، همداشان نارینه د ښځې او ښځه د نارینه لپاره د عیبونو د پټولو، نیمګړتیاوو کې یو له بل سره مرسته کوونکي دي، نو ویلای شو چې یو د بل لپاره لازم او ملزوم دي.



زده کړه اوتعلیم هم د ښځو اسلامي او مدني منل شوی حق دی چې باید په پام کې ونیول شي.

له همدې امله د ښځو حقونه منل او هغوی ته د درنښت په سترګه کتل، د ټولنې د هر غړي ملي، اسلامي او بشري دنده ده.

تجربو دا ثابته کړې ده چې له ښځو سره ښه چلند او نېک خوی، هغوی دې ته اړباسي چې له نارينه وو سره په کړو وړو کې له ښه چلند نه کار واخلي.

له ښځې سره ناوړه سلوک د اسلام له نظره مردود او غندل شوی دی.

ښځه هغه موجود دی چې د ژوندانه په ټولو برخو کې له نارينه سره اوږه پر اوږه برخه لري. ښځه مور ده او مور د ټولنيزو چارو په ټولو اړخونو کې شريکه ده. زموږ د هېواد يو زيات شمېر ښځې پر نورو برخو سربېره د ادب په برخه کې هم ستره ونډه لري. شعري ټولګې، ادبي نثرونه، ناولونه، ډرامې، کيسې او نورې راز، راز ليکنې يې ټولنې ته وړاندې کړې دي چې د ټولنې په سمون، اصلاح او رغاونه کې پوره اغېز لري.

د دې تر څنګه ښځينه ليکوالو او شاعرانو په خپلو اثارو کې د ښځو د حقونو غږ هم پورته کړی دی او د ښځو د ژوندانه ناخوالې يې په خپلو شعرونو او نثرونو کې انځور کړې دي چې په دې توګه يې د ښځو د ذهنونو په روښانتيا کې خپله دنده سرته رسولې ده. دلته د يوې ليکوالې مېرمن ((عظمت)) د نثر يوه بېلګه را اخلو چې پورتنی موضوع ته يې پکې انعکاس ورکړی دی.

## ته لرم يې!

زه ښځه يم ته نارينه يې ... ليکن خبر يې چې ته څنګه نارينه شوې! ؟

که ته فکر وکړې، نو يوه زمانه وه، داسې زمانه چې ته هيڅ هم نه وې ... هو ... ته هيڅ نه وې بالکل په نشت حساب وې.

ما تا له د خپل زړه غوښې او د ځيګر وينه درکړه. لوی انسان مې کړې، انسان مې درنه جوړ کړ. ليکن نن چې ته نارينه شوې، ستا په مټو کې زور پيدا شو، ته له مانه زما حق شوکوې. زما مری خپه کوې او ما خورې، ولې! ؟

صرف په دې وجه چې زه ښځه يم! ؟ کمزورې يم! ؟ او د خپلو مټو زور مې د زړه د غوښې او د ځيګر د وينې په شکل ستا مټو ته درکړی دی! ؟ ايا دا نر توب دی! ؟ ... دا انصاف دی! ؟ ... دا انسانيت دی! ؟ ... نه دا نرتوب دی، نه انصاف دی، نه انسانيت دی. دا




د لرم فطرت دی، لیکن ته لړم نه یې، انسان یې او زه ستا مور یم نو د دې لپاره ته د خپل انسانیت ثبوت ورکړه او خپله مور مه خوره.

ښځه په ټولنه کې داسې موجود دی چې له وجود پرته یې د ژوند دوام او بقا امکان نه لري، نو په کار ده چې د اسلامي لارښوونو او مدني قوانینو په رڼا کې د هغوی حقونو ته په درنه سترګه وکتل شي.

د متن لنډیز:

تاسو په پورتني لوست کې ولوستل چې ښځې د اسلامي او مدني قوانینو له مخې دکورنۍ او هېواد په برخلیک کې مهمه ونډه لري. ښځه او نارینه یو له بل پرته نیمګړي دي. ښځه د ټولنې نیمايي برخه جوړوي او په ټولنیزو او اقتصادي چارو کې له نارینه وو سره برابره ونډه لري. د ملي، اسلامي او بشري قوانینو او ارزښتونو له مخې د ښځو حقوقو ته ډېره پاملرنه لا زمه ده.




۱ـ زده کوونکي دې پورتنی لوست په وار سره د کتاب له مخې ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي.

۲ـ لاندې جملې بشپړې کړئ.

ښځې ستاسو ............ او تاسې د هغوی ............... یاست.

ښځه د ټولنې ........... برخه جوړوي، جنت د ............ تر پښو لاندې دی.

۳ـ زده کوونکي دې له متن څخه د ښځو حقونه په نښه کړي او ودې شمېري.

۴_ زده کوونکي دې د متن سخت لغات په وار سره پر تخته ولیکي او نور زده کوونکي دې د هر لغت د معنا په اړه خبرې وکړي.

۵_ زده کوونکي دې په متن کې مؤنث نومونه په نښه کړي او د (ی) ګانو سمه بڼه دې هم په پام کې ولري او په خپلو کتابچو کې دې یې ولیکي .

۶_ زده کوونکي دې د مېرمن ((عظمت)) د نثر بېلګه په لوړ غږ ولولي او بیا دې مفهوم په خپلو خبرو کې ووایي.




د ښځو د حقونو په اړه په کور کې یو لنډ مطلب ولیکئ او بله ورځ یې په ټولګي کې واوروئ.

## عادل قاضي

یوه ورځ یو سړی قاضي ته راغی او له خپل ملګري څخه یې ورته سر وټکاوه.

خپله دعوه یې ورته په زور او زېر او ډېر مهارت وویله، نو قاضي وویل:

ته په حقه یې.

بله ورځ د هغه سړي ملګری راغی هغه هم قاضي ته خپله دعوه په ډېر مهارت بیان کړه، قاضي وویل:

ته په حقه یې.

د قاضي ښځې چې دا دواړه قضاوتونه واورېدل، نو و یې ویل:

سړیه! دا څه قضاوت دی چې ته یې کوی، دا دواړه کسه په حقه کېدای شي! ؟

قاضي وویل:

بلې سمه ده، ته هم په حقه یې.







# ملي يووالی



ملت د يوه بڼ مثال لري. په بڼ کې ډېرې او ښکلا ښکلې ونې وي، هره ونه جلا ګل او جلا مېوه نيسي او هره مېوه جلا ګټې او ځانګړی خوند لري.

لکه بڼ چې له يوې ويالې اوبه کېږي، يو ملت هم د يوه حکومت له خوا اداره کېږي.

د يوه هېواد د مېشتو قومونو مجموعې ته ملت ويل کېږي. يو ملت هغه وخت د هوسا او سوکاله ژوند خاوند کېدای شي چې متحد او يو موټی وي.

د ملي يووالي په اړه په دې لوست کې د ګل پاچا الفت يو شعر تاسو لولئ. په دغه شعر کې ملت داسې يو باغ ګڼل شوی چې ښېلا ښکلې ونې يې د ښايست او رنګينۍ ښکلګې دي.

- ملي يووالی څه ته وايي او څه ګټې لري؟
- که په يوه ملت کې يووالی نه وي، زيانونه يې څه دي؟

یوه باغ کې وې ولاړې ډېرې ونې
هره پاڼه یې لایق وه د ستاینې
د دوی ټیلې یو له بله وې تړلې
غوړ په غوړ یوه چمن کې اوسېدلې
دغه واړه د یوه دهقان د لاس وې
لکه کوتې د یوه لاس تیټ و پاس وې
هر یوې بېله مېوه او بېل یې نوم و
رنګ او خوندکې یې توپیر ښکاره معلوم و
مګر دوی لکه د یو ګلشن ګلونه
یو له بله نژدې کړي وو لاسونه
خوا په خوا غاړه په غاړه خوله په خوله وې
له یوې خاورې پیدا د یوه کاله وې
د دې ټولو یو خزان او یو بهار و
ښه او بد یې وو شریک یو یې واکدار و
په حقوقو کې یې هیڅ نه و توپیر
باغبان و په هرې ونې ډېر زهیر
له یوې ویالې اوبه ورته راتللې
په یوه هوا کې ټولې لوییدلې
یو له بله یې هر حال کې شرکت و
په تمـــامه معنا یو صحیح ملت و


ګل پاچا الفت



## د شاعر لنډه پېژندنه:

پورتني شعر چې د ملي يو والي يوه ښه بېلګه او ښه انځور يې وړاندې کړی دی، دګل پاچا الفت دی. الفت د معاصرو اديبانو، ليکوالو او شاعرانو په ډله کې د يوه ځانګړي مقام څښتن دی. ډېر کتابونه يې په نثر کې ليکلي دي. شعري کليات يې په افغاني ټولنه کې ډېر مشهور دي. شعرونه يې تل ژوندی ښه لري. له هر وخت او حالاتو سره سمه شاعري ده. نثرونه يې ډېر ښه او ژور مفهومونه او پيغامونه لري. د الفت نثرونه د ټولو خوښېږي.

## د متن لنډيز:

د ملت ټول وګړي د اساسي قانون په وړاندې برابر دي. يعنې توکم، ژبه، رنګ او مذهب يې په پام کې نه نيول کېږي.

ټول د اساسي قانون له ښېګڼو برخمن وي. که يو هېواد يو کور وبولو، نو وګړو ته يې ملت ويلای شو. ژوندي ملتونه خپل ملي ارزښتونه لکه ملي دودونه او روايات، ملي ادب او ملي ژبه، ملي ذوقونه، ملي اخلاق، ملي موسيقي او نور په ډېره ښه توګه ساتي. يو مهذب ملت له نورو ملتونو څخه علم، فن او صنعت اخلي، خو خپلې ملي ځانګړنې ساتي.

د افغانستان قومونه په ګډه افغان واحد ملت جوړوي. هر څوک چې د افغانستان تابعيت ولري، افغان بلل کېږي، يعنې د افغان کلمه د افغانستان هر وګړي ته ويل کېږي.

افغان واحد ملت له بېلا بېلو قومونو څخه جوړ دی. په افغانستان کې مېشت قومونه ټول يو له بله سره ورونه دي. په خپلو منځو کې ښې اړيکې لري. د افغانستان د ډېرو ولايتونو په بېلا بېلو سيمو او بېلا بېلو کليو کې د افغان واحد ملت بېلا بېل توکمونه اوسېږي او په ډېرې خوشحالۍ ګډ ژوند سره کوي.

په ځانګړې توګه د ګل پاچا الفت شعر هم د ملي يو والي مفهوم څرګندوي. شاعر ملي يو والی له يوه باغ سره تشبيه کړی، لکه څنګه چې په باغ کې مختلفې ونې وي

او بېلا بېل رنګونه او مېوې لري، خو بيا هم له يوې ويالې څخه اوبه کېږي او يو له بل سره پيوند لري، همداسې په يو هېوادکې هم بېلا بېل قومونه ژوندکوي، خو د يو واحد ملت په نامه يادېږي. د دوی ګټه او تاوان، غم او خوشحالي او وياړونه سره شريک وي، يو له بله هېڅکله نه شي بېلېدای.




۱ـ زده کوونکي دې له ښوونکي وروسته په خپل وار سره شعر ولولي.

۲ـ زده کوونکي دې د شعر مفهوم په کتابچو کې وليکي او په وار سره دې په ټولګي کې ولولي.

۳ـ زده کوونکي دې په شعر کې ارتباطي کلمې پيدا او په خپلو کتابچو کې وليکي لکه: ونه ـ پاڼه...

۴ـ ښوونکی دې زده کوونکي په دوو ډلو ووېشي، هره ډله دې د شعر يو يو بيت ووايي او بله ډله دې هغه معنا کړي.

۵ـ زده کوونکي دې د ملي يووالي په مفهوم لنډې خبرې وکړي.

۶ـ زده کوونکي دې د لاندې کلمو د جمع شکل وليکي:

۱ـ چمن　　۲ـ توپير　　۳ـ واکدار　　۴ـ ملت

۷ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې استعمال کړي:

نيلي، زهير، توکم، مهذب




زده کوونکي دې د ملي يووالي په اړه يوه لنډه ليکنه وکړي او هغه دې سبا ته په ټولګي کې واوروي.



اووم لوست

# د ماينونو او ناچاودو توکو د نښو پېژندنه



زموږ ګران هېواد افغانستان د تېرو جګړو په کلونو کې د تباهيو او ويجاړيو ډګر و. د دغو جنګونو بېلا بېلو خواو و د خپلو مخالفينو د له منځه وړلو او مخنيوي لپاره تل ماينونه ښخول. د کلونو په اوږدو کې پر دغو ښخو شوو ماينونو بوټي راشنه شوي، باد و باران پرې شګې او خاورې اړولي دي. په دې ډول دغه خطرناک او وژونکي څيزونه د انسان له سترګو پټ دي، خو خطر يې زيات دی، انسان او حيوان ټپي کولای او وژلای شي.

د دې لپاره چې د دغه وژونکي څيز له خطره ځان او خپله ټولنه وژغورو، بايد د ماينونو نښې وپېژنو او نورو ته يې هم ور وښيو.

- تاسو ماين پېژنئ؟
- تاسې د ماين په اړه څه معلومات لرئ؟
- ماين لرونکي سيمې او له ماين څخه پاکې شوې سيمې په کومو رنګونو نښه کېږي ؟

ماینونه او ناچاودي توکي په هرځای کې پیدا کېدای شي. ډېره ګرانه او کله هم ناشونې ده چې ماینونه په سترګو ولیدل شي.

که چېرې تاسو په یوه داسې سیمه کې ژوند کوئ چې ماین پکې وي او یا د ماینونو په سیمه کې تګ راتګ کوئ، نو باید تل مو د ماینونو د علامو او د خطر نښو ته پام وي.

درې ډوله علامې د بېلا بېلو سیمو لپاره موجودې دي :

۱ـ رسمي علامې یا نښې:

هغه علامې دي چې د ماین پاکۍ د دفتر له خوا اېښودل شوې دي او درې رنګونه لري:

- سرې رنګ شوې ډبرې د ماینونو د خطر نښه ده.
- ابي رنګ شوې ډبرې د ناچاودو توکو د خطر نښه ده.
- سپینې رنګ شوې ډبرې د پاکې سیمې نښه ده.

یادې شوې نښې کېدای شي چې پر دېوالونو، د جګړې په لومړۍ کرښه، د سړک ترخنګ، رنګو شویو ونو او نورو سیمو کې وکارول شي.

په ځینو سیمو کې ځینې سیمې ستنې لیدل کېږي چې یوه خوا یې سره او بله خوا یې سپینه رنګ شوې ده. سره خوا د خطر او سپین اړخ یې د پاکې سیمې نښه ده.

۲ـ نارسمي یا سیمه ییزې علامې یا نښې:

هغه علامې دي چې د خلکو له خوا اېښودل شوي دي، لکه:

- د ډبرو او خاورو کوټ یا ځلې.
- هغه نښه چې له لرګي او یا تیږې څخه جوړه شوې او د خطرناکې ساحې پر لور د اشارې په شکل اېښودل شوې وي.
- لرګي، د ونې ښاخونه او نور شیان چې سړک یې بند کړی وي.
- هغه ډبرې چې د سړک او لارې پر غاړه اېښودل شوې وي.
- د چلیپا نښه چې له لرګیو یا نورو شیانو څخه جوړه شوې وي او داسې نور.





۳ـ د ماینونو او ناچاودو توکو د موجودیت احتمالي سیمې:

- هغه سیمې چې مخکې د جګړې سیمې وي.
- د ښارویو خرمن او یا هډوکي.
- نظامي مورچې او ښار ځایونه.
- وچ بوټي او هغه ځمکې چې بنې یې بدلون موندلی وي.
- د وسلو او کارتوسو صندوقونه، کارتوس اود پوځي وسایلو خراب شوي پاتې شوني (بقایا).
- د سیمونو ټوټې او اغزي لرونکي سیمونه.
- هغه لارې او سړکونه چې کار ترې نه اخیستل کېږي.

د لوست اصلي پیغام:

سرې رنګ شوې ډبرې د ماین د خطر، ابي رنګ شوې ډبرې د ناچاودو توکو د خطر او سپینې رنګ شوې ډبرې د پاکې سیمې نښې دي.

زده کوونکي دې دغه نښې په پام کې ولري او د کور نور کسان او همزولي دې هم په دغو خطرونو پوه کړي.




۱ـ زده کوونکي دې متن په وار سره ولولي او د ماینونو په اړه دې د درس مفهوم په لنډه توګه ووایي.

۲ـ زده کوونکي دې د لاندې رنګونو په اړه یوه یوه کرښه ولیکي چې دغه رنګونه د څه لپاره دي:

۱ـ سور ۲ـ سپین ۳ـ ابي

۳ـ د ماينونو او ناچاودو توکو احتمالي سيمې په ګوته کړئ.

۱ـ ..........................

۲ـ ..........................

۳ـ ..........................

۴ـ زده کوونکي دې په وار سره د ماين په اړه د خپلې سيمې معلومات او پېښې وړاندې کړي.

۵ـ زده کوونکي دې د لاندې جملو تش ځايونه په مناسبو کلمو په پنسل ډک کړي:

- سرې رنګ شوې ډبرې چې د ................. د خطر نښه ده.
- ابي رنګ شوې ډبرې چې د ................... د خطر نښه ده.
- سپينې رنګ شوې ډبرې د ..................... نښه ده.





## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د ماين د پېښو په اړه له خپلې سيمې څخه د کيسې په ډول څو کرښې وليکي، يعني که د ماين د چاودلو په اړه يې کومه کيسه اورېدلې وي، يا يې په خپلو سترګو ليدلې وي، په لنډه توګه دې وليکي.





اتم لوست

# د امیر شیر علي خان واکمني او د پښتو ژبې وده



امیر شیرعلي خان د افغانستان په معاصر تاریخ کې یو مشهور واکمن دی. د امیردوست محمد خان زوی دی او دوه ځله یې پاچاهي کړې ده.

امیر شیر علي خان علم پالونکی او ترقي خوښوونکی پاچا و. د افغانستان په معاصر تاریخ کې لومړنی پاچا دی چې د پښتو ژبې د علمي او عملي پرمختګ لپاره یې کار کړی دی.

پښتو یې په پاچاهي دربار کې روزلې ده. د ده په دوره کې پښتو کتابونه چاپ شوي او د دې ژبې د ودې او پراختیا لپاره هلې ځلې شوي دي.

- د امیر شیر علي خان د واکمنۍ په وخت کې کوم پرمختګونه وشول؟
- امیر شیرعلي خان پښتو ژبې ته کوم خدمتونه کړي دي؟

د امیر دوست محمد خان تر مړینې وروسته چې د هغه زوی امیر شیرعلي خان واکمن شو، په هېوادکې د واک پر سر شخړې روانې وې. امیر شیرعلي خان له دغو ستونزو سره سره په خپله دوره کې د هېواد د ترقی او علمي سطحې د لوړولو لپاره هڅې کړې دي.

د امیر شیرعلي خان د واکمنۍ په وخت کې لومړی ځل له هند څخه د چاپ لیتوگرافۍ (ډبرین) ماشینونه راوړل شول. په دې ماشینونو یې کتابونه، جریدې، نور مطبوعات او دولتي پاڼې چاپولې. په کابل کې د امیر شیرعلي خان په وخت کې دوه مطبعې جوړې شوې، یوه یې د شمس النهار او بله د مصطفاوي په نامه یادېده.

د امیر شېر علي خان په وخت کې د شمس النهار جریدې خپرېدل پیل شول. د شته معلوماتو له مخې دا په معاصر افغانستان کې لومړنۍ جریده وه. دې جریدې د نوي فکري غورځنگ د ودې لپاره مطالب خپرول. دغه نوی فکري غورځنگ د افغان سید جمال الدین او سید نورمحمد شاه له خوا رامنځته شوی و.

امیر شیر علي خان د پښتو ژبې ودې ته ځانگړې پاملرنه درلوده. د ده په وخت کې ځینې عسکري کتابونه له انگرېزي څخه پښتو ته وژباړل شول، لکه : پلی (پیاده) یو عسکري کتاب دی چې موضوع یې د عسکرو تمرین او قواعد دي. دغه کتاب قاضي عبدالقادر پېښوري پښتو ته ژباړلی دی او په ۱۸۷۲ مېلادي کال د کابل په بالا حصار کې چاپ شوی دی.

د عسکري قواعدو یو بل کتاب له انگرېزي ماخذونو څخه محمد ابراهیم خان ژباړلی دی. د دې کتاب یوه نسخه د امیر حبیب الله خان په مهر د اطلاعاتو او کلتور وزارت د خطي نسخو په کتابتون کې خوندي وه.

د امیر شیرعلي خان په وخت کې ځینې دیني، مذهبي او تعلیمي کتابونه هم لیکل شوي دي، لکه: د فیض محمد اخونزاده ((روضةالمجاهدین)) او د دوست محمد خټک ((تفسیر بدرمنیر او بحر العلوم)).

فیض محمد اخونزاده د روضةالمجاهدین په پای کې د امیر شېرعلي خان ستاینه په





دې ډول کړې ده:

په جهان کې ډېر ساعي يم
د تمام اسلام داعي يم
نور چا کړي کتابونه
په جهان کې تصنيفونه
ماکړ دا بحث بيان
په پارسو پښتو عيان
دا امير د دين مجلي
مسمی په شير علي

دوست محمد خټک د همدغه وخت يو بل ليکوال او شاعر دی. د نوموړي د نسب لړۍ د خوشحال خان بابا تر کورنۍ رسېږي. دوست محمد خټک د ((تفسير بدرمنير او بحرالعلوم)) په نامه کتابونه په همدغه وخت کې ليکلي دي. دوست محمد خټک د بحرالعلوم کتاب د امير شېر علي خان په نامه داسې پای ته رسولی دی:

د امير د شاهی زور دی
عالم ده وته نسکور دی
په کابل کې جانشين دی
حکمرانه يې نګين دی
کندهار او هرات دينه
چې د ده حکمونه ورينه
پسې بلخ دی برادره
تر خيبره بهره وره
له امير دوست محمد خانه
دی خلف دی قدر دانه





نورمحمد نوري ((کندهاری)) هم د امیر شیرعلي خان د وخت یو ښه لیکوال دی. نوموړی په سندهي، عربي، انګلېسي، پارسي او اردو ژبو ښه پوهېده. نورمحمد نوري د ((تحفة الامیر)) په نامه کتاب په ۱۲۸۲ هـ . ق . کال کې بشپړ کړی، دا د پښتو ژبې ګرامر دی چې په پارسي ژبه لیکل شوی دی. ((ګلشن امارت)) د نوري یو بل تاریخي کتاب دی چې په ۱۲۸۷ هـ . ق . کال کې په پارسي لیکل شوی دی او په ۱۳۳۵ هـ . ش . کال کې په کابل کې چاپ شوی دی. نوري ((د افغانستان تاریخ)) په نامه یو بل کتاب هم لیکلی دی.

امیر شیرعلي خان امر کړی و چې ټول عسکري تمرینونه باید په پښتو وي. د دې امیر په وخت کې به تعلیماتنامې، لیکونه او فرمانونه هم ټول په پښتو لیکل کېدل.

امیر شیر علي خان په خپل وخت کې ټول عسکري القاب، بولی (قوماندې) او عناوین په پښتو کړل، لکه:

| رتبه | پښتو لقب |
|---|---|
| سپه سالار | ټول مشر |
| نایب سالار | سر غټ مشر |
| جرنیل | غټ مشر |
| برګډ | پنځر (پنځه زر) مشر |
| صوبه دار | بلوک مشر |
| کرنیل | زرمشر |
| کپتان | سل مشر |
| حواله دار | لس مشر |




د ملکي مامورينو القاب داسې پښتو شوي دي.

| رتبه | پښتو القاب |
| --- | --- |
| صدراعظم | لوی مختار |
| خارجه وزير | لوی معين د باندې |
| حشمت الملک | لوی معين د غرو |
| مستوفي | لوی ملک |
| دبيرالملک | لوی کښلی |

**د متن لنډيز:**

امير شير علي خان يو علم پالونکی او ترقي خوښوونکی پاچا و. ده له هند څخه د چاپ ډېرين ماشينونه راوړل او د کتابونو، جريدو او دولتي پاڼو په خپرولو يې پيل وکړ. په کابل کې يې دوه مطبعې جوړې کړې چې يوه يې د شمس النهار او بله يې د مصطفاوي په نامه يادېده. امير شير علي خان په خپل وخت کې ټول عسکري القاب او بولی (قوماندې) په پښتو کړې.

امير شيرعلي خان د پښتو ژبې له ودې او پرمختګ سره ځانګړې مينه لرله.



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي.

- د امير شيرعلي خان په وخت کې په کابل کې کومې مطبعې جوړې شوې؟ نومونه يې واخلئ.
- د امير شيرعلي خان په وخت کې پلې کېدونکی نوی فکري غورځنګ د چا له خوا رامنځته شوی و؟

◆ د امير شېرعلي خان په وخت کې کوم ديني او مذهبي کتابونه د چا له خوا وليکل شول؟

۲ـ زده کوونکي دې هر يو په وار سره متن په لوړ اواز ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.

۳ـ د لاندې جملو تش ځايونه په مناسبو کلمو په پنسل ډک کړئ:

په کابل کې د امير شېرعلي خان په وخت کې دوه مطبعې جوړې شوې، يوه د ................او بله د ...................... په نامه يادېده.

امير شيرعلي خان په خپل وخت کې ټول عسکري ........................ پښتو کړل.

۴ـ زده کوونکي دې په دوو گروپونو ووېشل شي، د هر گروپ استازی دې په وار سره د درس مفهوم ووايي او نور دې ترې پوښتنې وکړي.

۵ـ زده کوونکي دې مفرد ، مؤنث او جمع مؤنث نومونه له متن څخه راوباسي او په ټولگي کې دې يې ولولي.

۶ـ د امير شيرعلي خان په وخت کې دغه لاندې کتابونه ليکل شوي، زده کوونکي دې د هر کتاب مخ ته د هغه د ليکوال نوم وليکي:

۱ـ روضة المجاهدين

۲ـ تفسير بدر منير

۳ـ بحر العلوم




زده کوونکي دې د خپلو معلوماتو له مخې په څو کرښو کې د امير شېر علي خان تر دورې راوروسته د پښتو د ودې په اړه لس لس کرښې وليکي.





نهم لوست

# نورستان



د لوی ننگرهار نوم به مو له خپلو مشرانو اورېدلی وي. لوی ننگرهار د افغانستان په ختیځ کې پروت دی. یو وخت د مشرقي د اعلٰی حکومت په نامه یادېده.

په لوی ننگرهار کې پخپله اوسنی ننگرهار، کونړ، لغمان او اوسنی نورستان ټول شامل وو.

بیا وروسته لغمان او کونړ د جلا ولایتونو په توگه ومنل شول، خو د نورستان ډېره برخه لا تر وروستیو پورې په کونړ او څه یې په لغمان پورې تړلې وه چې بیا د یو مستقل ولایت په توگه ومنل شو.

راځئ چې د خپل هېواد دغه غرنی ښېرازه او سمسوره سیمه او وگړي لږ وپېژنو.

■ تاسې د هېواد د ختیځو ولایتونو په اړه څه معلومات لرئ؟

■ د نورستان کومې ځانگړنې تر ټولو زیاتې په زړه پورې دي؟



افغانستان ۳۴ ولایتونه لري، یو یې نورستان دی چې په دې وروستیو کې د ولایت په توګه منل شوی دی. د نورستان زیاتره برخې، لکه: کامدېش، برګمټال، وایګل دره، واما او پارون پخوا په کونړ ولایت پورې او یو څه برخې یې په لغمان ولایت پورې تړلې وې.

نورستان په عمومي ډول په درېو برخو وېشل کېږي: ختیځ نورستان چې کامدېش او برګمټال پکې راځي. مرکزي نورستان چې وایګل دره، واما، پارون او کنتیوا پکې راځي او غربي نورستان چې دواب، نورګرام او منډول ولسوالۍ په کې شاملې دي.

د نورستان پخوانی نوم کافرستان و او د امیر عبدالرحمان خان تر واکمنۍ پورې یې وګړو ځانګړی دین درلود. د دغه دین پیروان لاتر اوسه د چترال په یوه سیمه کې پاتې دي چې کلش یې بولي.

نورستان ډېر سمسور غرنی ولایت دی. زیاتره غرونه یې په طبیعي ځنګلونو پټ دي، هوا یې په اوړي کې ډېره معتدله او د ژمي ډېره سړه ده. نښتر، سروه، کاچل، سرپ څېړۍ، غوره څېړۍ، ښوون، چناررنګی، وړښتی (غرنی بادام) انار او نورې یې هغه غرنۍ ونې دي چې پخپله راشنې کېږي.

غوز، توت، مرخنۍ، منه، خوبانۍ (زردالو) ناک، اینځر، شفتالو او نورې یې هغه ونې دي چې کښېنول کېږي. همدغو ونو بوټو او ځنګلونو نورستان ته ډېره ښکلا ښبلې ده. نورستان ډېر خوړونه، چینې او خو سیندونه هم لري. لنډی سیند، د پېچ سیند او د الینګار سیند د نورستان له غرونو څخه سرچینه اخلي. دغه غرونه د ختیځ هندوکش د غرونو لړۍ ده.

همدغو ځنګلونو، ونو، بوټو او خوړونو د څارویو د روزنې لپاره ښه او مناسب څړ ځایونه رامنځته کړي دي، ځکه خو نورستان د څارویو په روزنه کې ځانګړی شهرت لري. غواوې، غوایان، ګډان، مېږې، سېرلي او وزې یې مشهور څاروي دي.

د نورستان ولایت زیاتره برخه غرونو نیولې ده. د کرکیلې وړ ځمکې یې ښخې لږې دي. جوار، غنم، اوربشې، ږدن، لوبیا او الوګان یې مهم حاصلات دي.





د یادونې وړ ده چې په نورستان کې په دودیز ډول د کرکیلې چارې د ښځو او د ښاروېو د روزنې چارې د نارینه وو پر غاړه دي.

د نورستان ولایت مرکز پارون دی. نورستان د هندوکش د غرونو په لړۍ کې پروت دی، همدا لامل دی چې له یوې درې بلې درې ته تګ راتګ زیاتره باید پلی وي او د ژمي په موسم کې ناشونی وي. دا طبیعي خنډونه د دې لامل شوي چې د نورستانیانو ترمنځ اړیکې لږې کړي او ورو ورو په نورستاني ژبه کې لهجې رامنځته کړي او د وخت په تېرېدو په جلا ژبو واوړي.

نورستانیان یو اریایي ټبر دی چې تر اوسه یې د لرغوني اریایي ژوندانه ډېر څه ساتلي دي. نورستانیان ځانګړي دودونه لري. عام لباس یې پرتوګ، کمیس او پکول دی. ګډین، ګنډۍ، ډیګره او پایتاوې یې ځانګړی لباس دی.

د نورستان کلي زیاتره دهسکو غرونو په لمنو کې جوړ شوي دي. د غوزانو، مرخنو، انګورو او توتانو بڼونه او بهاند خوړونه یې د کلیو ښکلا لا زیاتوي. له غوزانو پرته د نورستان نورې مېوې د خرڅلاو بازار ته نه وړاندې کېږي.






۱ـ ګډ ین: پېړ وړین پرتوګ چې تر زنګانه پورې وي او پر پرتاګه د پاسه اغوستل کېږي.

۲ـ ګنډۍ: دکورتۍ په ځېر، خو ساده وي جېبونه نه لري او له وړېو پرته پکې نور څه هم نه وي کارول شوي.

۳ـ ډیګره: ګنډۍ او ډیګره دومره توپیر لري چې ګنډۍ ساده وي او د ډیګرې د لستونو چاپېره او ګرېوان رنګه او ګلدار وي. تر ګنډۍ یو څه لنډه هم وي.

۴ـ پایتاوې: یوه پېړه اوږده او پلنه وړینه پټۍ وي چې په ونو بوټو او غرونو کې یې د پنډیو د ژغورنې او د ستړیا د مخنیوي لپاره تر پنډیو تاوه وي.






**د متن لنډيز:**

نورستانیان يو اربابي توکم دی. ډېري لرغوني اربابي ځانګړنې يې لا تر اوسه ساتلې دي. د کونړ، چترال، بدخشان او لغمان په منځ کې د هندوکش د غرونو په ختيځو لړيو کې اوسېږي. د اميرعبدالرحمان خان د واکمنی پر مهال يې د اسلام سپېڅلی دين منلی دی. د خلکو کسب يې زياتره څاروي روزنه او کرکيله ده.




۱ـ زده کوونکي دې متن په لوړ غږ ولولي او نور دې ورته غوږ ونيسي.

۲ـ زده کوونکي دې د متن لنډ مفهوم په خپلو خبرو کې ووايي، که ځواب نيمګړی وي، بل زده کوونکی دې هغه بشپړ کړي.

۳ـ زده کوونکي دې له متن څخه د ونو او مېوو نومونه په خپله کتابچه کې وليکي او بيا دې هغه په ټولګي کې واوروي.

۴ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته لنډ لنډ ځوابونه ووايي:

- په نورستان کې د کار وېش څه ډول دی؟
- په نورستان کې کومې غلې دانې کېږي؟ نومونه يې واخلئ.
- په متن کې مو کومه برخه خوښه ده او ولې؟ خپل نظر څرګند کړئ.

۵ـ د نورستان مرکز په نښه کړئ او له سم ځواب نه په پنسل کرښه چاپېره کړئ :

الف ـ وايګل ب ـ برګمټال ج ـ کامدېش د ـ پارون

۶ـ په خپلو کتابچو کې لاندې مفرد نومونه په جمع او جمع نومونه په مفرد واړوئ.

| مفرد نوم | جمع نوم |
| --- | --- |
| ۱_ غوز................ | ۱_ ولایتونه ................ |
| ۲_ منه................ | ۲_ ځنگلونه ................ |
| ۳_ توت .............. | ۳_ الوگان .................... |
| ۴_ سیند .............. | ۴_ خندونه .................. |
| ۵_ لمنه .............. | ۵_ ځمکې .................... |






د نورستان د خلکو د دودونو په اړه له خپلو مشرانو څخه معلومات تر لاسه کړئ او په یو مخ کې یې ولیکئ.







# پوهاند رښتین ادبي څېره



زموږ د ادبیاتو په معاصر تاریخ کې ځینې داسې نومیالی څېرې شته چې د پښتو ژبې د معاصر ادب پنځه ستوري یې بولي.

دغه پنځه ستوري : پوهاند عبدالحی حبیبي، قیام الدین خادم، گل پا چا الفت، عبدالرؤف بېنوا او پوهاند صدیق الله رښتین دي چې د معاصر ادب بنسټونه یې ایښي او په ژبه او ادب کې ځانگړی مقام لري. په دې درس کې به د پوهاند صدیق الله رښتین په اړه معلومات ولولئ.

۱ـ د پښتو ادب د معاصرې دورې د دغو پنځو ستورو په اړه څومره معلومات لرئ؟

۲ـ پوهاند صدیق الله رښتین د پښتو ژبې او ادب په کومو برخو کې کتابونو لیکلي دي؟

پوهاند صديق الله رښتين د افغانستان د معاصرو ليکوالو په ډله کې نوميالی ليکوال او اديب دی. صديق الله رښتين د مولوي تاج محمد زوی دی او په ۱۲۹۸ هـ. ش. کال د مومندو د ((سره کمر)) په يوه علمي کورنۍ کې زېږېدلی دی. لومړۍ زده کړې يې په خپله کورنۍ کې کړي دي. نورې زده کړې يې د ننګرهار د هډې (نجم المدارس) په مدرسه او د کابل په عربي دارالعلوم کې سرته رسولي دي.

پوهاند رښتين په ۱۳۱۸ هـ. ش. کې د پښتو ټولنې په غړيتوب منل شوی دی. دا يې د رسمي دندې پيل دی او بيا يې ډېرې ښې دندې ترسره کړې دي. په پښتو ټولنه کې د قواعدو د څانګې مدير، د پښتو ټولنې مرستيال، د پښتو ټولنې لوی مدير او بيا رئيس و. په ۱۳۳۵ هـ. ش. کال کې د پوهنې وزارت مشاور او د ادبياتو پوهنځي استاد مقرر شو.

پوهاند رښتين پر پښتو سربېره په دري، عربي او اردو ژبو هم ښه پوهېده. په دغو ژبو يې يو شمېر مقالې ليکلي او خپرې کړې دي. هغه په ډېرو ښو علمي موضوعاتو لکه: ګرامر، د ادبياتو تاريخ، هنري نثر او نورو کې په لس ګونو کتابونه ليکلي دي چې ځينې يې دا دي:

د پښتو ادب تاريخ، پښتو ادبيات (رساله)، پښتانه شعراء دويم ټوک، د پښتو نثر هنداره، د پښتو ادب درې مشهورې کورنۍ، پښتو ګرامر په دري ژبه، پښتو اشتقاقونه او ترکيبونه، پښتو ژبښودنه، د پښتو او سانسکريټ نژدېوالی، پښتو څېړنه، د هند سفر، د ننګرهار او قطغن سفر، د مصر سفر، د شوروي اتحاد سفر، نوميالي پوهان او غازيان، پياوړي شاعران، روښان ستوري، ادبي او تاريخي سمونې او نور.

د پوهاند رښتين د چاپ او ناچاپ کتابونو شمېر څه د پاسه اتياوو ته رسېږي. همدارنګه يې په سلګونو مقالې په ډېرو ښو خپرونو کې خپرې شوې دي. نوموړي د ليکوالۍ په پيل کې شاعري هم کړې ده، خو وروسته يې يوازې نثر ته مخه کړې ده او په دې ډګر کې ډېر زيات راځلېدلی دی. پوهاند رښتين په ادبي هنري نثر کې پوخ لاس درلود او په دې ډګر کې يې ډېر کار کړی دی. هغه ډېر شمېر زلمي ليکوال روزلي او د خپل ادب





خدمت ته یې چمتو کړي دي.

پوهاند رښتین په ۱۳۷۷ هـ . ش. کال کې له نړۍ سترګې پټې کړې او د ننګرهار په بهسودو کې دکونړ د لوی سړک پر غاړه خاورو ته وسپارل شو.

د پوهاند رښتین د نثر یوه بېلګه :

وايي چې ښه شاعر د قوم سترګې او د حال ترجمان دی. دی په خپله ژبه د خپل چاپېریال ترجماني کوي. د اصلاحي نظر لوی خاوند وي. په خپل ذاتي نظر پسې نه ګرځي. د ودانۍ کارونه یې خوښېږي او په شعر کې یې د یو څرګند او عالي مرام پلوشې ځلېږي. اشعار یې د قام او وطن له درده ډک وي. کله یې شعر د تورې پړک او کله د ژوند برېښنا وي. خیال یې قوي او عزم یې ټینګ وي، څه چې وايي هغه پخپله هم کوي. د وینا او عمل ترمنځ یې پوره نژدېوالی موجود وي. رښتیا وايي او په رښتیاوو پسې ګرځي. د قام په درد ښه پوهېږي. د اشعارو په پردو کې یې تاریخونه پراته وي. د لوړ همت او اوچت خیال څښتن وي. هر څه نه وايي، حق وايي، حق غواړي او حق لټوي.

د خوږمنو د زړه همراز او همخیال وي. د ولس په ژبه غږېږي. په کږو لارو نه درومي. خوشامنګر او غوره مال نه وي او د شعر مرغلرې په کونجکو نه پلوري، لکه چې خوشحال خټک ویلي دي :

د هغه شاعر دانې وشه په ژبه
چې د شعر دردانې پلوري په مال



## د باغ ننداره

يو سهار شومه روان د باغ په لوري
په اسمان کې ښکارېده لا ښکلي ستوري
باغ ته لاړم يو عجب ښکلی ګلشن و
د ښايسته ښايسته بلبلو نشيمن و
قسم قسم سرودونه د مرغانو
په دې باغ کې چغهار و د توتيانو
نسيم هسې په مزه و الوتلی
له فرحته واړه باغ و غوړېدلی
د قدرت تابلو رنګينه ښايسته وه
د هر بوټي غېږ کې ايښې ګلدسته وه
لمر راوخوت له مشرق څخه رڼا شوه
هر طرف ته د ژوندي شور غوغا شوه
سيوري پرېوتل سجدې باندې قبلې ته
په تعظيم او احترام مخ د کعبې ته
زر زري وړانګې د لمر پرې راخپرې شوې
ګرچاپېره د اسمان لمنې سرې شوې
سپينو پرخو چې دا وړانګې وليدلې
له خوښيه تولې پورته والوتلې
تازګي د بوټو زياته له پخوا شوه
د غوټيو خولګی وازه په خندا شوه
جوړ په باغ کې لا يو بل رنګه حالت شو
تا به وې پاچا له خوبه را اوچت شو




**د متن لنډیز:**

پوهاند صدیق الله رښتین د پښتو ادبیاتو د معاصرې دورې یو نومیالی ادیب او لیکوال دی. په بېلا بېلو موضوعاتو کې یې په لس ګونو کتابونه لیکلي دي. ډېر کسان یې د خپلې ژبې، ادب او هېواد د خدمت لپاره روزلي دي. لکه نوم او تخلص چې یې د صداقت او رښتینولی استازیتوب کوي، په عملي ژوندانه کې هم خپل هېواد، خپلې ژبې او خپلو هېوادوالو ته صادق او رښتینی و.

پوهاند رښتین د پښتو ژبې او ادب له هغو بنسټ ایښودونکو څخه دی چې د پښتو ژبې ګرامر، ادب تاریخ، څېړنې او هنري نثر په برخه کې یې مهم کارونه سرته رسولي او ډېر ارزښتمن اثار ترې راپاتې دي.




۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووايي :

پوهاند صديق الله رښتين د پښتو ژبې او ادب په کومو برخو کې کتابونه ليکلي دي ؟

۲ـ زده کوونکي دې په چوپه خوله متن ولولي او لنډ مفهوم دې يې په پنځه پنځه کرښو کې په خپلو کتابچو کې وليکي او هغه دې په وار سره په ټولګي کې ولولي.

۳ـ زده کوونکي دې په وار سره د ((ښه شاعر)) متن په لوړ اواز په ټولګي کې ولولي.

۴ـ زده کوونکي دې د پوهاند رښتين د مهمو کتابونو نومونه واخلي.

۵ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه د کتاب د پای له برخې معنا او په جملو کې دې يې وکاروي :

۱ـ مدام ۲ـ عالي ۳ـهمراز ۴ـنوميالی ۵ـ دردانې

۶ـ زده کوونکي دې د خوشحال بابا دا لاندې شعر معنا کړي :

د هغه شاعر دانې وشه په ژبه
چې د شعر دردانې پلوري په مال

۷ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي د ((ښه شاعر)) په متن کې دې يوه ډله مفرد مذکر نومونه او بله ډله دې جمع مذکر نومونه پيدا کړي.




د پښتو د معاصر ادب د پنځو ستورو له ډلې څخه د هر يوه په اړه چې تاسو ته اسانه وي، په خپله کورنۍ يا شاوخوا کې پوښتنه وکړئ او شپږ شپږ کرښې يې د ژوند يا کتابونو او يا هم د شعر او نثر په اړه وليکئ، سباته يې ټولګي ته درسره راوړئ او په خپل خپل نوبت يې ولولئ.









# لاسي صنايع



■ لاسي صنايع څه ته وايي؟

د ماشيني صنعت تر څنګ، لاسي صنعت هم د يو هېواد په اقتصادي او کلتوري پياوړتيا کې ډېر لوی ارزښت لري. لاسي صنايع ډېره لرغوني تاريخچه لري. انسانانو د خپلې اړتيا له مخې له هماغو لومړنيو دورو څخه د لاسي صنايعو کار ته لاس اچولی. دوی په خپله خوښه د لومړنيو موادو بڼه اړولې او د خپلې اړتيا وړ شيان يې ترينه جوړ کړي دي. بيا وروسته ورسره ښکلا هم ملګرې شوې او د يو شيز په جوړونه کې يې ښکلا هم په پام کې نيولې ده. په افغانستان کې هم لاسي صنايع اوږد تاريخ لري او مختلف ډولونه يې دود دي چې په دې درس کې پرې خبرې کوو.

■ لاسي صنايع د انسانانو په ژوند کې څه تاثير لري؟

■ په افغانستان کې کوم ډول لاسي صنايع دود دي؟

د خامو او لومړنیو موادو بدلون په داسې یو شي چې د وګړو د استفادې وړ وګرځي صنعت نومېږي. صنعت په دوه ډوله دی: ماشیني او لاسي. ماشیني صنایع د ماشین له لارې تولیدېږي او لاسي صنایع هغه دي چې په لاسونو جوړېږي. د بېلګې په توګه که لرګی خام مواد وګڼو، نو کله چې ترکاڼ له هغو څخه کړکۍ، دروازې او مېزونه جوړوي، همدا د لاسي صنعت یو بهیر دی، خو په دې شرط چې په جوړېدونکو شیانو او څیزونو کې به ښکلا او ظرافت هم په پام کې ساتي.

زموږ په ګران هېواد کې لاسي صنایع ډېر لرغونی تاریخ لري. د ډېرو پخوانیو لاسي صنایعو اثار چې د کار اسباب، ګاڼې، سکې، د ښکار وسایل او نور پکې دي، لیدل شوي دي. اوس هم لاسي صنایع زموږ په هېواد کې دیو شمېر خلکو کسب او بوختیا ده چې پر اقتصادي ارزښت سربېره کلتوري ارزښت هم لري. هغه شیان چې د کلیو، باندو او ښارونو ښځې، نارینه، نجونې او هلکان یې په خپلو لاسونو جوړوي او یایې په جوړښت کې له ساده وسایلو څخه کار اخلي، لاسي صنایع بلل کېږي. لاسي صنایع نه یوازې زموږ ضرورتونه پوره کوي، بلکې زموږ ژوند او د استوګنې چاپېریال هم ښکلی کوي. د هرې سیمې لاسي صنایع د خپلې سیمې له خامو موادو څخه جوړېږي. په بله وینا هغه مواد چې په هماغه سیمه کې پیداکېږي او خلک یې په اسانه او ارزانه بیه ترلاسه کوي، لاسي صنایع ترې جوړوي. لکه څنګه چې ورۍ، وژغنې زموږ د هېواد په شمالي مرکزي او لویدیځو برخو کې ډېرې پیداکېږي، نو له هغو څخه غالۍ، ټغرې، لیمڅې، برک، شړۍ، بنینونه، واسکټونه، جورابې، دستکشې او نور شیان جوړوي. په پکتیا کې مزري ډېر پیداکېږي او له هغه څخه شکرۍ، ټوکرۍ، خولۍ، او ببوزي (لاسي پکي) جوړوي.

پروان او استالف د ښکلو خټینو لوښو له کبله مشهور دي چې د لوښو مختلف ډولونه، لکه کاسې، صراحۍ، شمعه دانونه، غابونه او نور په ډېره ښکلې بڼه جوړوي. همدرانګه د دغې سیمې ګلدانونه، پیالې، کټوۍ، منګي، چاټۍ او نور هم ډېر مشهور دي.

په کندهار او هرات کې له وربښمو څخه ښکلي سکوی (خامکونه)، دسمالونه او لنګۍ جوړوي. په شمال کې له سونډو څخه پړي، بوجۍ او رسۍ جوړوي. همدرانګه





په بغلان او هرات کې خامک، ګلدوزي او نور د ګنډلو دود شته چې مصنوعات يې په هېواد او بهر کې خوښوونکي لري.

په کونړ او نورستان کې له لرګي څخه پر دروازو او کړکيو سربېره مختلف ښکلي لرګين شيان جوړوي چې خورا مشهور دي.

له څرمنې څخه څپلی، بوټان، بکسونه او نور شيان دهېواد په زياتو برخو کې جوړېږي.

په دې توګه ويلای شو چې د لاسي صنايعو مختلف ډولونه اوس هم په افغانستان کې دود دي چې له يوې خوا اقتصاد پياوړی کوي او له بلې خوا زموږ د کلتور يوه غني برخه جوړوي.

**د متن لنډيز:**

لاسي صنايع ډېره لرغونې او اوږده تاريخچه لري. زموږ په هېواد کې هم لاسي صنايع له لرغونو زمانو څخه دود دي.

په بېلا بېلو ولايتونو او سيمو کې بېلا بېل لاسي صنايع دود دي، لکه : خاورين لوښي، له ورېښمو ښکلي ګنډونه او کالي، له لرګيو څخه مختلف اړين اوزينتي شيان، لاسي ګنډون لکه ګلدوزي، خامک، تار شمېر او نور. لاسي صنايع که له يوې خوا زموږ اقتصاد پياوړی کوي او اړتياوې مو لېرې کوي، له بله پلوه زموږ کلتور هم غني کوي.



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په لوړ اواز ولولي او بيا دې د لاسي صنايعو په ارزښت او اهميت خبرې وکړي.

۲ـ زده کوونکي دې پر دوو ډلو وویشل شي، هره ډله دې د افغانستان په مختلفو ځایونو کې د لاسي صنایعو د تولید سیمې په ګوته کړي.

۳ـ زده کوونکي دې په متن کې عام نومونه او خاص نومونه په نښه کړي او په وار سره دې په ټولګي کې ووايي.

۴ـ زده کوونکي دې د لاسي صنایعو ډولونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او هغه دې په ټولګي کې واوروي.

۵ـ زموږ په هېوادکې د خاورو مختلف لوښي په کومه سیمه کې جوړېږي؟

الف : بغلان ب : کونړ ج: هرات د: استالف









زده کوونکي دې وګوري چې په سیمه کې یې کوم لاسي صنایع جوړېږي، په دې هکله دې یو مخ په خپله کتابچه کې ولیکي او بیا دې په بله ورځ په ټولګي کې واوروي.







# مرکه د پښتو



د امیر حبیب الله خان تر مړینې وروسته د هغه زوی امان الله خان د افغانستان واکمن شو. امان الله خان د غازي امان الله خان په نامه مشهور دی. نوموړی خپلواکي غوښتونکی، ترقي خوښوونکی او ادبپالونکی پاچا و. په ۱۲۹۸ هـ . ش . کې یې په رسمي توګه یو ځل بیا افغانستان خپلواک اعلان کړ.

- تر امان الله خان د مخه په پښتو کې کوم کتابونه او رسالې چاپ شوي دي؟
- غازي امان الله خان خپلې ژبې ته څه خدمت کړی دی؟

د پښتو ژبې د پراختیا او پر مختیا لپاره غازي امان الله خان د پاچاهي ارګ په شمالي برج کې په ۱۳۰۱ هـ . ش. کې یوه علمي تحقیقي ټولنه جوړه کړه چې د ((مرکه د پښتو)) په نامه وبلله شوه. په ۱۳۰۲ هـ . ش . کال کې د افغانستان د اساسي تشکیلاتو د نظامنامې د حکم له مخې د پوهنې وزارت د دربم ریاست په توګه وپېژندل شوه.

غازي امان الله خان د خپلې واکمنۍ په دوره کې په ۱۳۰۴ هـ . ش . کال کې کندهار ته تللی و او د هغې سیمې خلکو ته یې ویلي وو:

((غواړم په پښتو ژبه چې زه ورسره ډېره مینه لرم، ستاسې سره خبرې وکړم)) دا خبرې له پښتو ژبې سره د هغه ترقي غوښتونکي ټولواک مینه څرګندوي. همدا مینه وه چې غازي امان الله خان د پښتو ژبې د علمي او فرهنګي ودې لپاره ډېرې هلې ځلې وکړې. د امیر عبدالرحمان خان او امیر حبیب الله خان د واکمنیو په وخت کې هم ځینې کتابونه، رسالې او ځینې ژباړې چاپ شوي، خو د افغانستان لومړنی اساسي قانون چې هغه وخت یې ((اساسي نظامنامه)) بلله، لومړی ځل د امان الله خان په امر په پښتو ولیکل شو. وروسته بیا نورې ډېرې نظامنامې په پښتو ولیکل شوې. په ښوونځیو کې په پښتو تدریس پیل شو او کتابونه هم په پښتو شول. په پښتني سیمو کې به پاچا او ملکي مامورینو ته په پښتو ویناوې کولې. پښتني سیمو ته به فرمانونه هم په پښتو لېږل کېدل. په اخبارونو کې هم پښتو ژبه زیاته شوه. په ۱۳۰۳ هـ . ش . کال کې غازي امان الله خان امر وکړ چې د کندهار د سیمې په اخبار ((طلوع افغان)) کې دې هم پښتو مطالب خپاره شي.

((مرکه د پښتو)) دولس کسه غړي درلودل چې له بېلا بېلو سیمو څخه وو. لومړنی مشر یې د هغه وخت لوی او نومیالی عالم مولوي عبدالواسع اخونزاده و. دغې ټولنې د خپل کار په پیل کې په پښتو یو اعلان خپور کړ او له پښتنو څخه یې د پښتو ژبې د پالنې په لاره کې مرسته وغوښتله. په دغه اعلان کې راغلي وو:

ـ هر نوم دې په پښتو ولیکل شي او مرکه د پښتو ته دې راولېږل شي.

ـ هر پښتون چې په پښتو کې پوهه لري او غواړي چې مرکې ته ځان ورننباسي، خپله





غوښتنه دې ولیکي او مرکې ته دې یې راواستوي.
ـ د پښتني سیمو هر پښتو پوه دې د خپلې سیمې ځانګړې لغتونه راغونډ او په لیکلې بڼه دې یې مرکې ته راواستوي.

((مرکې د پښتو)) ځینې مهم کتابونه هم لیکلي و و. (( یوازنۍ پښتو)) او ((پښتو پښویه)) دوه مهم کتابونه یې چاپ شوي دي. دوه مهم قاموسونه یې ترتیب او تدوین کړي و و، خو له بده مرغه دغه دوه قاموسونه تر چاپ د مخه له منځه لاړل. د دغو دو و قاموسونو په ترتیب او تدوین کې ډېره ونډه د ((مرکې د پښتو)) د دویم مشر عبدالرحمٰن لودین وه. د دغو قاموسونو یوه برخه د دغې مرکې د یوه غړي ملا محمد ((ساپي)) په وسیله د هغه د زوی عبدالله خان افغاني نویس لاس ته ورغلې او په **۱۳۳۵** هـ . ش . کال کې یې دغه نسخه له یو څه زیاتونو سره چاپ کړې ده.

**د متن لنډیز:**

غازي امان الله خان پر کلتور مین واکمن و. د پښتو ژبې د علمي او فرهنګي پرمختګ لپاره یې ((مرکه د پښتو)) جوړه کړه. په اخبارونو او نورو خپرونو کې یې د پښتو مطالبو د خپرولو امر وکړ. پښتني سیمو ته یې په پښتو فرمانونه لېږل پیل کړل. په ښوونځیو کې یې په پښتو تدریس پیل کړ. لومړنی اساسي قانون او نور قوانین یې په پښتو ولیکل.

د امان الله خان په دوره کې په عملي ډول د پښتو ژبې د علمي پرمختګ لپاره کار پیل شو.

مرکې د پښتو ځینې مهم کتابونه لکه (( یوازنۍ پښتو)) او ((پښتو پښویه)) تر لیکلو وروسته چاپ او خپاره کړل. دوه قاموسونه یې هم ولیکل، خو له بده مرغه په هغه وخت کې چاپ نه شول.




۱ــ زده کوونکي دې متن په پټه خوله ولولي او بيا دې د متن مفهوم په لنډ ډول ووايي.

۲ــ ((مرکه د پښتو)) څه وخت جوړه شوه او کوم کارونه يې سرته ورسول. کارونه يې په يو لست کې ترتيب کړئ.

۳ــ زده کوونکي دې په متن کې خاص نومونه په نښه کړي او بيا دې يې په ټولگي کې په لوړ اواز ووايي.

۴ــ د ((مرکه د پښتو)) لومړی مشر په پنسل په نښه کړئ :

الف: مولوي عبدالواسع اخونزاده ب: عبدالرحمٰن لودين

ج: ملا محمد ساپی د: عبدالله خان افغاني نويس

۵ــ زده کوونکي دې د متن مهم ټکي پخپلو کتابچو کې وليکي او په ټولگي کې دې يې واوروي.

۶ــ د ((مرکه د پښتو)) څخه د مخه که د پښتو ژبې په اړه کوم کارونه شوي وي، زده کوونکي دې يې څو مثالونه ووايي.




زده کوونکي دې د هغو مرکزونو په اړه څو کرښې وليکي چې د پښتو ژبې د علمي او کلتوري ودې لپاره کار کوي.







# نومځري (ضمیرونه)




د ګرامر له لوستو څخه په ښوونځیو او پوهنځیو کې موخه داده چې ژبه سمه ولیکلای او ولوستلای شو او ځان له تېروتنو څخه وژغورو. نومځري هم د ګرامر یوه برخه ده چې په ژبه کې ښکلا او لنډون رامنځته کوي او د نومونو د تکرار مخه نیسي.

تاسې په اووم ټولګي کې نوم او د نوم ډولونه، صفت او د صفت ډولونه ولوستل، په دې لوست کې به نومځري وپېژنو.

■ نومځري څه ته وايي او ولې کارېږي؟

■ که په ژبه کې نومځري ونه کارول شي، نو په خبرو یا لیکنه کې به کومه ستونزه رامنځته شي؟

نومځری هغه کلمه ده چې د نامه پرځای کارېږي او د نوم د تکرار مخه نیسي.
نومځري د جنس، عدد، حالت او شخص له مخې ګردانېږي.

د نومځرو ډولونه:

۱ـ ځانګړي نومځري (شخصي ضمیرونه)
۲ـ ملکي یا اضافي نومځري
۳ـ اشاري نومځري
۴ـ استفهامي نومځري
۵ـ پلوي نومځري
۶ـ مبهم نومځري
۷ـ اشتراکي نومځري

## ۱ـ ځانګړي نومځري:

ځانګړي نومځري د کسانو یا اشخاصو پر ځای کارېږي او په دوه ډوله دي:
غښتلي نومځري او کمزوري نومځري.





الف ـ غښتلي نومځري يا منفصل ضميرونه :

په يوازې توګه کارېږي، له بلې کلمې سره پيوست نه راځي او په خپلواکه توګه معنا ورکوي.

| اشخاص | | مفرد | | جمع |
|---|---|---|---|---|
| | | اصلي حالت | اوښتی حالت | اصلي حالت |
| ۱ | | زه | ما | موږ |
| ۲ | | ته | تا | تاسي (تاسو) |
| ۳ | نارينه | دی<br>هغه | ده<br>هغه | دوی<br>هغوی |
| | ښځينه | دا<br>هغه | دې<br>هغې | دوی<br>هغوی |

ب ـ کمزوري نومځري (متصل ضميرونه):

دا نومځري په خپلواکه ډول نه کارېږي، له نورو نومونو سره چې وکارېږي خپله معنا څرګندوي.

| شخص | مفرد | جمع |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | يې | يې |

لکه: کتاب مې راکړه، کتاب دې واخله، کتاب يې واخيست، کتابونه مو واخيستل، کتابونه يې واخيستل، کتابونه مو واخلئ.

## ۲ـ ملکي يا اضافي نومځري:

يو څيز په څه يا چا پورې اړوند بولي يا په بله وينا يو شی د څه يا چاګڼي.

| اشخاص | مفرد | | جمع |
|---|---|---|---|
| ۱ | زما | | زموږ |
| ۲ | ستا | | ستاسې |
| ۳ | نارينه | د ده | د دوی |
| | ښځينه | د دې | د دوی |

لکه : زماکتاب راکړه. زموږکتابونه يوسه. ستاکتاب راکړه.

ستاسې کتابونه واخلئ. د ده کتاب څه شو ؟ ددې کتاب چېرته دی ؟

د دوی کتابونه څه شول ؟

## ۳ـ اشاري نومځري:

هغه نومځري دي چې اشخاصو او ښيزونو ته اشاره کوي او د هغو پر ځای کارېږي.

| ګڼه | واټن (فاصله) | مفرد: اصلي حالت | مفرد: اوښتی حالت | جمع: اصلي حالت | جمع: اوښتی حالت |
|---|---|---|---|---|---|
| ۱ | لنډ | دغه | دغه | دغه | دغو |
| | | دغه | دغې | دغه | دغو |
| ۲ | لېرې | هغه | هغه | هغه | هغو |
| | | هغه | هغې | هغه | هغو |
| ۳ | لا لېرې | هوغه | هوغه | هوغه | هوغه |
| | | هوغه | هوغې | هوغه | هوغو |





### ۴_ استفهامي یا پوښتنیز نومځري :

د پوښتنې لپاره کارېږي. د شخص، وخت، ځای څرنګوالی او څومره والي له مخې لاندې ډولونه لري :

څوک : د شخص لپاره کارېږي، لکه : څوک راغی؟

چا: د څوک اوښتی شکل دی او د شخص لپاره کارېږي، لکه: چا وژړل؟

کوم (کومه) : د شخص او شیانو لپاره کارېږي، لکه: کومه ښځه ځي؟ کوم سړی ځي؟

کله : د وخت پوښتنه کوي او نه ګردانېږي، لکه : کله راغی؟

کله راغله؟، کله به راشي؟، کله لاړ؟، کله لاړه؟

څنګه : د یو شخص، شي یا عمل څرنګوالی پوښتي، لکه څنګه دې ولیکه؟ څنګه دې رسم کړ؟ څنګه دې میدان پاک کړ؟

څو: د اشخاصو او شیانو شمېر پوښتي، ځکه نو د جمع په شکل کارېږي، لکه:

څو زده کوونکي راغلي وو؟ څو قلمونه دې وپېرل؟ څو کسانو ډوډۍ خوړلې ده؟

څومره : د اشخاصو او شیانو شمېر او د څرنګوالي او څومره والي درجه ښیي، لکه : څومره زده کوونکي دې ولیدل؟ څومره کبان دې ونیول؟ څومره ښکلی دی؟ څومره تود دی؟

ولې: د یوه عمل او پېښې لامل پوښتي، لکه : ولې راغلې؟ ولې درس نه لولې؟ ولې جومات ته نه ځې؟

د معاصر لیکوال محمد ایوب خان اڅکزي لاندینی نثر ولولئ:



## اعتبارات

وايي چې يوه ورځ ملکه په خپل محل کې په يوه کار مشغوله وه، دروازه وټکېدله، ويلې څوک يې؟ ورته وويل شول چې ولي عهد.

ملکې اعتنا ونه کړه او خپل مشغوليت يې جاري وساته.

د کافي انتظاره بعد، بيا دروازه وټکول شوه، ملکې وويلې څوک يې؟

جواب ورکړل شو چې ستا فرمانبردار زوی.

ملکې فوراً دروازه ورخلاصه کړه او ورته و يې ويل چې ګوره زويه! همېشه کوښښ وکړه چې په دنيا کې په خپلو انساني اوصافو او خويونو وپېژندل شې، ولې چې دنياوي حيثيت اضافي او اعتباري شی دی چې هر وخت پناه کېدونکی دی.

الف: په پورته نثر کې ضميرونه پيدا کړئ.

ب: د نثر مفهوم په خپلو عباراتو کې ووایاست:

### ۵_ پلوي نومځري :

د اشخاصو له پلوه د يوه عمل پلو يا لوری ښيي او تل تر فعل د مخه راځي. دا نومځري درې بڼې لري:

(را، در، ور)

را : د متکلم (لومړي شخص) لوری ښيي، لکه : راکړه، راوړه، راواخله او نور.

در : د مخاطب (دويم شخص) لوری ښيي، لکه : درواخله، درپورې کړه، درځه او نور.

ور : د غايب (درېيم شخص) لوری ښيي، لکه : ورکړه، وروړه، ورپورې کړه او نور.

### ۶_ مبهم نومځري :

دا نومځري د يوه ناڅرګند شخص لپاره کارېږي او په دې ډول دي :





هر : د جنس او حالت له مخې گردانېږي، زیاتره د مفرد لپاره راځي، لکه : هر ځوان، هره پېغله، هر سړی، هره ښځه، هر کتاب، هره کتابچه او نور.

په اوښتي حالت کې د جمع لپاره راځي، لکه : په هرو ځو ځوانانو کې، په هرو ځو پېغلو کې.

بل : یوازې د شمېرېدونکي مفرد نامه پر ځای کارېږي او د جنس او حالت له پلوه گردانېږي، لکه : بل ځوک، بل ځوان، بله پېغله، بل سړی، بله ښځه او نور.

نور : جنس نوم او جمع نوم راښیي او د جنس او حالت له پلوه گردانېږي، لکه: نور هلکان، نورې نجونې، نور جوار، نوره بوره.

ټول : دا نومځری هم جنس او جمع نوم راښیي او د جنس او حالت له پلوه گردانېږي، لکه : ټوله کورنۍ، ټول غړي، ټول ښارونه، ټولې دښتې، ټول سړي، ټولې ښځې.

## ۷_ اشتراکي نومځری (خپل):

دا نومځری د لومړي، دویم او درېیم شخص لپاره او هم د مفرد او جمع لپاره یو ډول کارېږي، ځکه یې اشتراکي نومځری بولي. دا نومځری هم د جنس او حالت له مخې گردانېږي، لکه : احمد خپله کورنۍ دنده تر سره کړې ده. حمیدې خپل کورنی کار کړی دی. ښاپېرۍ خپل ورور ته درس وایي.




زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووایي:

۱_ ځانگړي نومځري په ځو ډوله دي؟ هر ډول یې په مثالونو کې څرگند کړئ.

۲_ ځو ډوله نومځري پېژنئ؟ نومونه یې واخلئ.

۳_ لاندې نومځري مشخص کړئ او خپل ټاکلي نومونه ورته ولیکئ:

زه .......... ته ........... ستا ............... هغه ................ مې ................

يې..............

۴_ په لاندې جملو کې نومځري په نښه کړئ چې کوم نومځري دي :

- زه هره ورځ ښوونځي ته ځم.
- د ده کتاب له ماسره دی.
- قلم دې ورک شو.
- بل قلم دې واخيست.
- ولې دې قلم ورک کړ؟
- څومره وخت دې تېر کړ؟
- څوک به راغلی وي؟

۵_ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي او يو له بل نه دې د نومځرو پوښتنې وکړي. ښوونکی دې د پوښتنو ځوابونه وڅاري.

۶_ زده کوونکي دې په لاندې جملو کې نومځري په نښه کړي :

- څوک راغی؟
- چېرې اوسېږې؟
- کوم کتاب دې خوښ دی؟
- نور هلکان چېرې دي؟
- څه دې راوړل؟



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له کوره تر ښوونځي او له ښوونځي تر کوره د خپل تګ او راتګ حال وليکي او په هغو کې دې نومځري په نښه کړي چې کوم نومځري يې کارولي دي.



# لیک نښې

؟ ! . ،
: ( ) (( ))
ـ ؛

لیک نښې هغه علامې دي چې په لیک لوست کې یې کارول لویې لویې تېروتنې له منځه وړي او په کارولو یې لوستونکی د سمو لوستلو او سمو لیکلو جوګه کېږي.

د دغو نښو زده کړه د هر چا لپاره ضروري ده، که نه نو لوستل او لیکل به مو تېروتنې او نیمګړتیاوې ولري.

- تاسې د لیک نښو په اړه معلومات لرئ؟
- د لیک نښو مراعاتول لیکونکي او لوستونکي ته څه ګټه لري؟

له تورو پرته ځيني نښې هم شته چې په سمو لوستلو کې له لوستونکي سره مرسته کوي. دغه نښې ډېرې زياتې ارزښتناکې دي، ځکه چې سړی په لوستلو کې له تېروتنې څخه ژغوري او په سمو لوستلو کې اسانتيا پېښوي. په ليکنه کې د دغو نښو په مرسته لوستونکي کولای شي چې په لوستنه کې په دې پوه شي چې په کوم ځای کې تم شي، سا واخلي او يا کومه کلمه په بلې پورې وتړي.

په ليکنه کې د ګڼو کيفيتونو، لکه: حيرانتيا، پوښتنې، خطاب، تمسخر يا ملنډو وهلو، ندا او داسې نورې څرګندونې د همدغو نښو په راوړلو سره کېږي.

١ـ (،) ٢ـ (.) ٣ـ (:)

۴ ـ (-) ۵ـ (؟) ۶ـ (!)

٧ـ ( ) ٨ـ (...)

له دې امله دلته په لنډه توګه هغه نښې له بېلګو سره راوړو چې ډېرې ضروري دي.

١ـ (،) کامه: دا نښه موږ ته راښيي چې يوه وړه يا نيمګړې جمله له بلې سره اړيکې لري او په لوستلو کې يې بايد ډېر لږ ځنډ وشي،لکه : څه چې کرې، هغه به ريبې. څه چې دې راکړل، ښه مې درکړل. په يوې جملې کې د څو پرله پسې نومونو د بېلونې لپاره هم راځي، لکه : د افغانستان مشهورې مېوې انګور، انار، بادام، خټکي، منې، جلغوزې او نورې دي.

٢ـ (٠) ټکی يا نقطه : دا نښه ديوې بشپړې جملې په پای کې ايښودل کېږي او د خبرې د تمامښت نښه ده، لکه : کابل د افغانستان پلازمېنه ده. زما ورور حميد نومېږي.

٣ـ (:)دوه سر په سر ټکي يا شارحه: دا نښه د هغې جملې يا کلمې په اخر کې راځي چې شرح او تفصيل ورپسې وي، لکه : هر څوک چې په لاندې لارښوونو عمل وکړي، نه ناروغه کېږي :





۱ـ د شپې له خوا دوخته ویده کېدل،

۲ـ لږه ډوډۍ خوړل،

۳ـ سهار دوخته راپاخېدل،

همدرانگه د چا د وینا د راخیستلو په وخت کې د هغه له نامه نه مخکې او هم له راخیستل شوې وینا نه مخکې دغه نښه ایښودل کېږي، لکه : رسول اکرم ﷺ فرمایلي دي : ((... زه تاسې ته ونه وایم چې دوزخي څوک دی؟ واورئ! هر کبر جن، بد خویه او بخیل دوزخي دی.))

۴ـ (-) بېلنۍ یا ډش: دغه نښه څو ځایه او په دې ډول کارول کېږي:

۱ـ د معترضه یا څنگیزو جملو د ښودلو لپاره، لکه : هغه ورځ ـ بیا دې یې خدایﷻ نه راولي ـ پرما څومره وغمېده چې پلار مې سخت ناروغ شو.

۲ـ په کوم داستان یا ډرامه کې چې د دوو کسو ترمنځ خبرې اترې وي، نو د هر یوه خبره په هم دغه نښه پیلېږي، لکه : احمد محمود ته وویل:

ـ ایا ته به اجملووینې؟

ـ هو! که وخت مې پیدا کړ.

ـ او که وخت دې پیدا نه کړ؟

ـ بیا به تا هرو مرو خبر کړم.

۳ـ د اعدادو، ارقامو او نېټو د ښودلو لپاره هم لیکل کېږي، لکه : د حمل له ۱۴-۲۰ پورې او یا دا چې د (۱۹۳۹ – ۱۹۴۵) کلونو تر منځ په نړیواله جگړه کې په میلیونونو انسانان ووژل شول .

۵ـ (؟) پوښتنیزه نښه یا سوالیه: دا نښه د پوښتنیزو جملو په پای کې راځي، لکه :سید جمال الدین افغان (رح) چېرته وفات شوی و ؟

۶ـ (!) د حیرانتیا یا ندا نښه : دا نښه په لاندې ځایونو کې کارول کېږي:

۱ـ د خطاب لپاره، لکه : ښاغلو! ورونو! زده کړه وکړئ!، وخت خوشې مه تېروئ!

۲ـ له ندا او غږکولو نه وروسته، لکه: یا خدایه! دا څه حال دی؟

۳_ د امر کولو پر وخت، لکه چوپ شه!

۴_ د هیلې څرګندونې پر وخت، لکه : کاشکې! زه هم درسره وای.

۵_ د حیرانتیا پر وخت، لکه : توبه، توبه، دومره ټګي!

۶_ د ستاینې او افرین پر وخت، لکه : افرین ستا په مېړانه!

۷_ د افسوس او ارمان پر وخت، لکه : درېغه! درېغه!، ارمان! ارمان! چې ما هم زده کړه کړې وای.

۸_ د خوښۍ پر وخت، لکه : واه! واه!، پاه! پاه!

۷_ ( ) وړې لیندۍ: د دغو لیندیو تر منځ هغه توضیح یا معترضه جمله راځي چې ډېره مهمه نه وي او حذفول یې جملې ته څه زیان نه رسوي، لکه : رحمان بابا (خدای ﷻ دې یې وبښې) د پښتو ژبې نومیالی شاعر و. دلته (خدای ﷻ دې یې وبښې) معترضه جمله ده که حذف شي، جملې ته څه زیان نه رسوي.

خاص نومونه، عددونه او خارجي کلمې هم د دغې نښې تر منځ لیکل کېږي، لکه : زما ملګری (احمد) چې راغی، نو ویې ویل : ستا ورور له مانه (۱۰) کتابونه وړي دي.

۸_ (...) څنګ پر څنګ ټکي: د حذف یا تېرېدنې نښه، کله چې د یو نوم یا یوې جملې څرګندېدل لا زم نه وي، یا یې لنډون لا زم وي، هغه وخت پرله پسې درې ټکي ایښودل کېږي، لکه : هغه به ویل چې زه نه غواړم په دې اړه زیاتې خبرې وکړم، خو بیا به یې هم خبره پسې اوږده کړه : ... دغه راز د دې موضوع بل اړخ دا دی چې په ښه روزنه کې د ښوونکي ترڅنګه د مور او پلار پاملرنه هم ډېره ضروري ده ... ښوونکی هم د مور او پلار درجه لري....

د حذف د ټکو لپاره څه ټاکلی شمېر نشته، خو عام نظر دا دی چې دغه ټکي دې لږ تر لږه درې او زيات نه زيات پنځه وليکل شي.





**د متن لنډیز:**

لیک نبښې یو شمېر ځانګړې نښې دي چې په لیکنه کې د بېلا بېلو مفاهیمو او حالتونو د ښودلو لپاره راځي. دا نښې په لیکنه کې ځانګړی ارزښت لري. که سمې او پر ځای وکارول شي، له لوستونکي سره د معنا او مفهوم په افاده کې ډېره مرسته کوي او که سمې ونه کارول شي، نو ځینې معنوي تېروتنې رامنځته کوي. دا نښې زیاتې دي، موږ دلته یوازې د هغو ځینې مهمې او مشهورې در وپېژندلې.




زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووایي.

۱_ لیک نښې د لیک په لیکلو او لوستلو کې څه ګټه لري؟
۲_ که تاسو د لیک نښو په اړه څه معلومات لرئ؟ ټولګیوالو ته یې ووایاست!
۳_ دغه نښه (؟) په کوم ځای کې راوړل کېږي؟
۴_ زده کوونکي دې ګران لغتونه په کتابچو کې ولیکي او په جملو کې دې یې استعمال کړي.
۵_ د لاندې جملو په پای کې کومې نښې راځي؟
کابل د افغانستان پلازمېنه ده
د احمد قلم چېرې دی
کاشکې زه هم درسره وای
عزیز، لونګ، رشید او اتل نن راورسېدل
۶_ په لاندې متن کې لیک نښې په ګوته کړئ:

پرون مازیګر احمد زموږ کورته راغی بکس یې هم ورسره و ما ورته وویل په بکس کې دې څه دي هغه راته وویل چې قلم کتاب کتابچه او پنسلونه پکې دي موږ دواړه کورس ته روان شوو زموږ کورس د حمل له اتم نه تر دېرشم پورې دوام کوي احمد وویل کاشکې دا کورس لږ اوږد وای ښوونکي وویل شاباس په وخت راغلئ بیا ښوونکي یو تن ته اشاره وکړه او ویې ویل هلکه پاڅېږه تېر درس ولوله د هلک درس نه و زده ښوونکي وویل ولې دې درس نه دی زده هلک غلی ولاړ و




زده کوونکي دې په کور کې د ټکي یا نقطې، د سر په سر ټکو یا شارحې او پوښتنېزې نښې لپاره یوه یوه جمله ولیکي.





پنځلسم لوست

# انشاُ او ليکوالي



تاسي تېر کال په اووم ټولګي کې ولوستل چې املاء په لغت کې مهلت ورکولو او ډکولو ته وايي او په اصطلاح کې خپلې خبرې يا د بل خبرې په صحيح ډول ليکل دي. په دې لوست کې به تاسي ته د انشاء په اړه معلومات درکړو.

- املاء او انشاء څه توپير لري؟
- په انشاء کې کوم شيان راځي؟

انشاء: په لغت کې د یوه نوي شي پیداکولو ته وایي. په اصطلاح کې دیوه نوي فکر او خیال څرګندولو ته انشاء وایي. په ساده وینا په نظم یا نثر د خپلو افکارو او خیالونو په لیکلې بڼه څرګندولو ته انشاء وایي. انشاء په نثر او نظم دوارو کېدای شي. د انشاء فن یا د لیکوالۍ هنر دا دی چې انسان خپل مطلب په سم او رسا ډول اداکړي. یعنې د خپل ذهن خیال او فکر په ښو او مناسبو الفاظو کې په اغېزناکه توګه ولیکي. د ښو کلمو غوره کول او ترتیبول د انشاء مهمه برخه ده.

یو لیکوال او شاعر باید د کلمو په غوره کولو، نښلولو او کارولو ښه پوه وي. همدارنګه باید دا ورتیا ولري چې نوي الفاظ او معناوې پیدا او ښکلا پکې واچوي.

که څوک غواړي چې د خلقت او فطرت په رمزونو او رازونو پوه شي او په یوه شنه پاڼه یا یوه ګل کې د الله ﷻ د قدرت نښې یا د معرفت دفتر وګوري، له خپل عقل، شعور او احساس څخه دې کار واخلي. یا په بله وینا د زړه سترګې دې وغړوي.

پر یوه لاره ډېر وګړي تېرېږي، خو یو نیم پکې چېرته یوه ښکلې مرغلره ومومي چې د چا له امېله پرېوتې او په خاورو کې پرته وي. پر دې لاره ډېر لاروي روان وي، څوک یوې خواته، څوک بلې ته ګوري د چا یوه شي ته پام وي، د چا بل ته، یو پکې د دېواله له کنډوه کوم ښکلی مخ ووینې، بل د بام په سر توره کتوه.

د یوه نظر د خان او ملک په بنګله وي، بل د خوارانو او غریبانو جونګړو او کنډوالو ته ګوري. ځینې ډېر لېرې واړه شیان لیدای شي، ځینې تر پښو لاندې ځمکه نه ویني او هوا ته ګوري.

په یوه باغ کې څوک خس و خاشاک ټولوي او څوک دګلو دستې جوړوي. د چا دیدار په کاروي او د چا دینار. کارغه په یوه خوا ځي بلبل په بله خوا، یو ځان ویني بل جهان ویني. څرنګه چې د انسانانو په څرګند نظر کې ډېر توپیر شته، دغه راز د ټولو خلکو د زړونو سترګې هم یو راز ځار نه کوي. په همدغه ډول د فکر او نظر اختلاف دی چې د لیکوالو او شاعرانو د لیک او وینا په طرز یې اغېز کړی دی او د هر یوه انشاء او سبک یې ځانګړی کړی دی.





په انشاء کې د املاء برخه شامله نه ده. املاء د بل یا خپلې خبرې په سمه توګه لیکلو ته وایي، یعنې په منل شوې او دودشوې بڼه د خبرو لیکلو ته املاء وایي.




کوم لیکوال چې په یوې موضوع څه لیکي، لومړی باید یوه ټاکلې موخه ولري، بیا د هغې موخې په اړه ښه فکر وکړي او خپل فکر او خیال په ښو، خوږو او هنري الفاظو کې ترتیب او په ښه بڼه یې څرګند کړي. که چېرې همداسې وکړي، نو په لوستونکو به ښه اغېز وکړي، لکه چې یو انځورګر د ښې کمرې او ښو الا تو په وسیله ښه فلم او ښه انځور اخیستی شي، دغسې که یو ادیب او لیکوال له خپلو حواسو څخه په ښه سوچ او فکر کار واخلي، کولای شي چې د طبیعت او د ژوند له چارو او پېښو څخه خورا ښه اقتباس وکړي او په اغېزناکه توګه یې ټولنې ته وړاندې کړي.

په انشاء کې دلیکوال اروایي حالت، شخصیت، ذکاوت او نور لید په یوه ډول څرګندېږي، خو په دغو څیزونو هغه وخت ښه پوهېدای شو چې دهغه لیکوال اثار زیات ولولو، دهغه ژوندلیک ولولو او د هغه د ژوندانه له بېلا بېلو اړخونو سره ځان اشنا کړو.

د متن لنډیز:

نوی مضمون، نوی خیال او نوی فکر چې د الفاظو او کلماتو په قالب کې په ماهرانه ډول ځای کړی شي، انشاء ورته وایي. که یو لیکوال د بل چا مضمون او مطلب رانقل کړي، انشاء یې نه شو بللی.

د انشاء اړین توکي نوي افکار، نوي خیالونه او د الفاظو هنري ترتیب دی.

د الفاظو په سمه، کره او منل شوې بڼه لیکلو ته املاء وایي.




۱ـ زده کوونکي دې د متن هر پراگراف په لوړ غږ ووايي او د پراگراف مفهوم دې په خپلو خبرو کې څرگند کړي.

۲ـ انشاء په لغت او اصطلاح کې څه ته وايي؟

۳ـ دیوې ښې انشاء لپاره باید شاعر او لیکوال کوم ټکي په پام کې ولري. زده کوونکي دې یې په کتابچو کې ولیکي او بیا دې په وار سره هغه په ټولگي کې واوروي.

۴ـ زده کوونکي دې د نظم او نثر توپیر په څو لنډو جملو کې له مثالونو سره وړاندې کړي.

۵ـ زده کوونکي دې د لاندې لغتونو معنا د کتاب په پای کې پیدا او په جملو کې دې یې وکاروي.

| | | | |
|---|---|---|---|
| ـ فن ـ خلقت | ـ فطرت | ـ رمز | ـ معرفت |
| ـ دینار | ـ څار | ـ اقتباس | ـ کره |

۶ـ په متن کې ستاینوم (صفت) په نښه کړئ او په ټولگي کې یې په وار سره واوروئ.




زده کوونکي دې په کور کې پخپله خوښه د یوې موضوع په اړه انشائیه لیکنه وکړي او بله ورځ دې یې هر یو په ټولگي کې واوروي.

تاسو داسې وگڼئ چې خپله لیکوال یاستئ او یوه موضوع ځانته ټاکئ، خپله یې لیکئ او انشاء کوئ. دخپلې لیکنې املایي خوا به هم په پام کې لرئ.







شپاړسم لوست

# متلونه (د کاڼي کرښې)



ولسي ادبيات د هر ولس په ادبي تاريخ کې ډېره مهمه او ارزښتناکه ونډه لري. ولسي ادبيات زياتره شفاهي بڼه لري او په هغو ټولنو کې زيات پياوړي وي چې ليک لوست پکې ډېر عام نه وي. په پښتو ادبياتو کې هم د شفاهي ادبياتو ونډه ډېره مهمه او ډېره زياته ده.

په ادبياتو کې محاورې، سندرې، ټوکې ټکالې، متلونه، لنډۍ او نور راځي.

په اووم ټولګي کې مو په ولسي ادبياتو کې لنډۍ ولوستې په دې لوست کې به د ولسي ادبياتو يو بل ډول ((متل)) ولولو:

- متلونه څه ته وايي؟
- ولې خلک په خبرو کې متلونه کاروي؟

ټول ولسونه د خپل کلتور او ټولنيزو ارزښتونو په پام کې ساتلو سره متلونه لري، په پښتو کې هم ډېر زيات متلونه شته. د پښتو د ولسي ادبياتو يوه ډېره شتمنه برخه همدغه متلونه دي.

متلونه هغه لنډې، له مطلبه ډکې جملې دي چې ويونکي يې د خپلې وينا او ادعا د پخلي، کوټلتيا او پر اورېدونکو د منلو لپاره وايي. د متل په کلمو کې يو ځانګړې لطافت پروت وي.

کېداى شي متل منظوم وي يا منثور، خو خپل ځانګړى وزن او رواني به هرومرو لري. همدارنګه د متل موضوع ښايي رښتينې يا هم افسانه يي وي، خو په ولس کې يې داسې شهرت موندلى وي چې د ريښتينتوب تر بريده رسېدلى وي.

متل يوه لنډه جمله ده چې په استعاره يي ډول يو مهم مفهوم پکې نغښتى وي او د متل په ويل کېدو سره هغه مهمه مفکوره او مفهوم د اورېدونکي ذهن ته لېږدول کېږي.

متل په جرګو او مرکو کې هم د بحث او خبرو په جريان کې د پرېکړې او پايلې لپاره استعمالېږي. د متل استعمال په دوه کسيزو خبرو کې هم وي، خو په شخص پورې اړه لري چې څومره متلونه يې زده دي.

هغه کسان چې په خپلو خبرو کې پرځاى او ډېر متلونه کاروي، هغه د ولس مجرب او هوښيار کسان بلل کېږي.

د نړۍ ټول ملتونه، متلونه لري. هره ټولنه د خپلو دودونو ، رواجونو ، ځانګړتياوو او ارزښتونو په پام کې ساتلو سره د متلونو سترې پانګې لري او په حقيقت کې د هغه ولس د ژوند هنداره ګڼل کېداى شي. پښتو متلونه هم زموږ د ولس د غوره هنداري په توګه موږ ته زيات ارزښت لري.





**راځئ چې دلته څو متلونه سره ولولو:**

خپله لاسه، ګله لاسه
د کور ګټه، د لاهور ګټه
که لاړ شې تر بلخه، درسره ده خپله برخه
ځمکه هغه سوځېږي چې اور پرې بلېږي.
څه چې کرې، هغه به رېبې
د دروغو مزل لنډ دی
هر چا ته خپل وطن کشمیر دی
د کبر کاسه نسکوره ده
تشه لاسه ته مې دښمن یې
که غر لوی دی پر سر یې لار شته
چې بد کړې، بد به پرځې
د وچو له امله لانده هم سوځي
اور ته خپل او پردي یو دی
پړ مې کړه، مړ مې کړه
کیږدی په خپلو مړاندو ولاړه وي
پردی کټ تر نیمو شپو وي
کارغه د زرکې تګ کاوه، خپل یې هم هېر کړ
سمندر چې په ویالو شي هم وچېږي.
اول سلام پسې کلام
انسان د احسان تابع دی

هر متل د یوې تجربې په نتیجه کې رامنځته شوی وي، خو د یو شمېر متلونو سره تړلې کیسې هم موږ ته راپاتې دي او د ځینو اصلي کیسې موږ ته نه دي راسېدلې، خو کېدای شي په ولس کې موجودې وي. راځئ چې په دې ادعا د پوهېدلو لپاره د دوو متلونو کیسې ولولو:

## ۱ـ څوک چې خوب کوي مېښه يې نر کټی زېږوي:

وایي چې په یوه غوجل کې د دوو کسانو مېښې تړلې وې. دواړه مېښې پر یوه وخت لنګېدې هرې یوې ته خپل خپل خاوند ناست و. له دوی څخه یو ویده شو. مېښې لنګې شوې یوې مېښې کټی او بلې مېښې کټۍ وزېږوله. وېښ سړي چې مېښې يې کټی زېږولی و د هغه ویده سړي له مېښې سره خوشې کړ او د هغې مېښې چې کټۍ يې زېږولې وه د خپلې مېښې سره خوشې کړه.

کله چې ویده سړی راویښ شو، څه ګوري چې مېښې ته يې کټی ولاړ دی او د هغه بل مېښې ته کټۍ ولاړه ده، ورته ویې ویل: مبارک دې شه! بختور يې چې مېښې دې کټۍ زېږولې ده!

هغه ورته وویل: څوک چې خوب کوي مېښه به يې نر کټی زېږوي.

## ۲ـ د غله په ږېره خس دی:

وایي چې په یوه غونډه کې یو شی ورک شو، د غونډې برخوال نه پوهېدل چې غل څنګه معلوم کړي. سره راغونډ شول، یو پکې تجربه کار و، هغه وویل: زه غل پېژنم، نورو ورته وویل: څنګه؟ هغه وویل: د غله په ږېره خس دی. په دې وخت کې غل بې ځنډه خپلې ږېرې ته لاس وروړ چې ګوندې رښتیا يې په ږېره خس دی او باید لیرې يې کړي چې څوک يې و نه پېژني، خو نورو ولید او و يې پېژاند چې غلا همده کړې ده، نو په دې توګه هر متل د یوې تجربې په نتیجه کې رامنځته شوی وي.





**د متن لنډيز:**

متل د شفاهي ادبياتو يوه مهمه برخه ده چې په محاوره او خبرو اترو کې د استدلال او خپلې خبرې د پخلي لپاره کارول کېږي.

متل يوه وړه جمله يا عبارت دی چې يو لوی مفهوم رانغاړي. زياتره متلونه ځانته کيسې لري يا په بله وينا يو متل د کيسې د پېښېدو په پای کې رامنځ ته شوی وي. متلونه ډېره اوږده مخينه لري او سينه په سينه تر موږه را رسېدلي دي.

په پښتو ژبه کې يو شمېر متلونه راټول شوي او په کتابي بڼه چاپ شوي دي، خو زياتره متلونه لا تر اوسه پورې د خلکو په سينو او محاورو کې لا ژوندي دي، خو په کتابونو کې نه دي راټول شوي.



## فعاليتونه

۱ـ زده کوونکي دې دغو پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- متلونه په خبرو کې د څه لپاره کارول کېږي؟
- متلونه منظوم وي که منثور؟
- متلونه زموږ د ادبياتو په کومې برخې پورې اړه لري؟

۲ــ زده کوونکي دې په دوه ډلو ووېشل شي د يوې ډلې استازی دې يو متل وايي او د بلې ډلې استازی دې په وار سره د هغه معنا کوي.

۳ــ زده کوونکي دې په دوه ډلو ووېشل شي يوه ډله دې لس منظوم او بله ډله دې لس منثور متلونه ووايي.

۴ــ د لاندې متلونو معنا پخپلو کتابچو کې وليکئ او په ټولگي کې يې واوروئ.

- د غله په ږیره خس دی
- غل په غره کې نه ځايېږي
- مه کوه په چا چې و به شي په تا
- چاره که د سرو شي د ځيگر د منډلو نه ده

۵ــ زده کوونکي دې د لاندې متلونو تش ځايونه ډک کړي.

- هر چاته خپل ..................کشمير دی.
- د يو لاسه ...................... نه خېژي.
- څه چې .......................... هغه به .....................
- پړ مې ....................... مړ مې .....................

۶ــ په لوستل شوو متلونو کې موکوم يو خوښ دی، ولې؟ نظر مو وواياست.

۷ــ په لوستل شويو متلونو کې نومځري (ضميرونه) پيدا کړئ. او وواياست چې کوم ډول نومځري دي.

۸ــ که د کوم متل کيسه مو زده وي په ټولگي کې يې وواياست.






په کورنۍ کې له مشرانو څخه پوښتنه وکړئ او د هغوی له خولې نوي متلونه وليکئ او بيا يې بله ورځ په ټولگي کې ولولئ.





# د مور زړه



د مور د مينې او محبت، د مور د زړه سوي او مهربانۍ په اړه به تاسو ډېرې خبرې اورېدلې وي، خو اوس چې تاسو د مور په اړه کوم شعر لولئ، د مور د خواخوږۍ او مهربانۍ يوه ستره نمونه ده. دغه مطلب د افغانستان د نوميالي معاصر شاعر سيد شمس الدين مجروح په قلم له يوه بهرني (غربي) اثر څخه په شعر ژباړل شوی دی.

مور، تر ټولو مهربانه، مور تر ټولو زياته مينه ناکه ده، خو داسې کيسې او پېښې هم کېدونکي دي . تاسو دغه کيسه په شعري بڼه ولولئ.

**د شاعر لنډه پېژندګلوي:**

سید شمس الدین مجروح د افغانستان د معاصرو ادبیاتو یو خوږ ژبی شاعر او لیکوال دی. په ۱۲۸۹ هـ . ش . کال د کونړ ولایت د شین کورک کلي په یوې روحاني کورنۍ کې پیدا شوی دی. زده کړې یې په خپل کلي کې سرته ورسولې او رسمي دنده یې د اعیانو په مجلس کې پیل کړه. بیا یې مختلفې دندې سرته ورسولې چې د عدلیې د وزیر او د صدارت د مرستیال په توګه یې هم کار کړی دی.

دسید شمس الدین مجروح د شعرونو یوه مجموعه (منتخب شعرونه) په ۱۳۳۷ هـ . ش . کال د پښتو ټولنې له خوا چاپ شوې ده او دویمه مجموعه (یاد فریاد) یې په پیښور کې په ۱۹۸۵ م. کال کې چاپ شوې ده. سید شمس الدین مجروح په ۱۳۸۱ هـ . ش . کال وفات شوی دی.

پسرلی د کال ځواني وه هوا ښه وه
د ګیاه پرته په ځمکه لونګې شنه وه
ټول عالم په خوب ویده و نیمه شپه وه
هرې خوا ته د سپوږمۍ رڼا خوره وه
یو عاشق معشوقه ناست د رود په غاړه
په شراب د مینې مست و و دغه دواړه
سره ناست وو دوی بهر کلي نه لرې
دواړو ویلې ښې خوږې خوږې سندرې
د دوی منځ کې وې د راز و نیاز خبرې
یو له بله یې وړې کړې وې وزرې
د ښایست غرور په سر کې د جینۍ و
د هلك په سر کې هم جوش د ځوانۍ و



سید شمس الدین مجروح

هلك ووړ محبوبې ماته يې كړانه
ماته زياته يې له دينه له ايمانه
څوك به نه وي محبت كې زيات له مانه
مادې هيڅكله خداى نه كا بې له تانه
زړه چې زيات له سرو ماله دى دلبره
ما قربان كړ هغه هم د ستا له سره
جينى ووېل دا خبرې كوې څله
په دې لار كې زړه قربان وي تل ترتله
زړه په مينه كې عاشق نه ځي هر كله
دا په دې لار كې اول قدم دى كله
زه به تاومنم هله زما ياره
چې د مور زړه كې دې راوړې زما لپاره
خپله مور سرې ته زياته له هر څاده
زړه د مور يوه مرغلره بې بها ده
كه د ستا مينه له ما سره رښتيا ده
كه صحيحه دا دعوه د مينې ستا ده
د مور زړه دې كړه ترې غوڅ راپې ورمه ماله
نو به هله زه خولګى درکړمه تاله
د هلك په سر چې دغه امتحان شو
په وجود كې يې برپا د غم توپان شو
هك پك ودريده په دوه و و كې حيران شو
خو پرې مينه شوه غالبه راروان شو
نو د مور سينه يې څيرې په خنجر كړه





مرغلره يې د زړه ترې رابهر کړه
چې هلك له دغه کاره نه وزګار شو
بيا روان په دغه لورې په تلوار شو
لار کې ولوېد طيعت ورته په قار شو
زړه يې هم له لاسه خاورو کې ګوزار شو
ناګهانه له زړه غږ شو چې بچيه!
خير دې وي ژوبل خو نه شولې زړګيه

## د مور ستايل او درناوی:

دغه اصل ته په پښتو ادبياتو کې هم زياته پاملرنه شوې ده. زموږ زيات شمېر شاعرانو او ليکوالو په خپلو منظومو او منثورو اثارو کې د مور مقام ستايلی دی.

په بېلا بېلو ادبي نثرونو لکه داستانونو، ناولونو او نورو ادبي ټوټو کې د مور مقام ته پاملرنه شوې او د مور مقام پکې ستايل شوی دی. ويلای شو چې د مور مقام په پښتو ادبياتو او بيا په لنډيو کې ځانګړې ځای لري او زموږ د ادبياتو يو مهم څپرکی جوړوي. په بېلا بېلو ليکنو کې د مور مقام، د مور مهرباني، شفقت او عاطفې د اولاد په روزنه کې د هغې کړاو او زيار انعکاس موندلی دی. د دغو ټولو ليکنو مقصد يو دی او هغه دا چې د مور د مقام او حقونو پېژندل او د هغې درناوی کول.

په ولسي ادب کې د مور د مينې عاطفې او مهربانۍ په اړه ډېرې کيسې شته چې يوه نمونه يې دلته راوړو:

وايي چې د يوې مور ماشوم بلې ښځې پټ کړ. د ماشوم مور که هر څومره له غلې ښځې څخه خپل ماشوم وغوښت، خو هغې ورنکړ او ويې ويل چې دا زما زوی دی. د ماشوم مور په چيغو چيغو قاضي ته ولاړه او عرض يې وکړ چې يوې ښځې مې ماشوم پټ کړی او نه يې راکوي. قاضي غله ښځه راوغوښته هر څومره پلټنې چې يې ترې وکړې





ښځه قانع نه شوه، ویل یې چې دا زما خپل زوی دی، پر ما یې ناحقه دعوه کړې ده.

قاضي و ویل: ما یوازې پرېږدئ چې د پرېکړې په اړه فکر وکړم. دواړه ښځې د قاضي له کوټې نه و وتلې. ښه شېبه وروسته قاضي دواړه ښځې راوغوښتلې هغوی ته یې خپله پرېکړه داسې اعلان کړه:

وروسته د ډېر سوچ نه زه دې نتیجې ته ورسېدم چې ماشوم باید دوه ټوټې شي، یوه ټوټه د یوې مور او بله ټوټه د بلې مور. په دې پرېکړې کې به عدل او انصاف پر ځای شي.

قاضي جلات راوغوښت، ویل راشه دا ماشوم دوه ټوټې کړه. کله چې جلات توره په لاس راغی د ماشوم اصلي مور غږ کړ:

قاضي صاحب ماشوم مه دوه ټوټې کوئ، ماشوم زما نه دی، هغې ته یې ورکړئ. قاضي پوه شو چې د ماشوم اصلي مور همدا ده، ځکه چې د خپل زوی مرګ یې نشو زغملای او هغه بله چې د ماشوم اصلي مور نه وه د قاضي پرېکړه یې ومنله.

په دې توګه قاضي ماشوم خپلې اصلي مور ته وسپاره او هغې بلې غلې ښځې ته یې سزا وټاکله.

**د متن لنډیز:**

د اسلام ستر پیغمبر حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي چې ((جنت د مور تر پښو لاندې دی)). د مور مقام په ټولنه کې تر هر چا لوړ دی او درناوی یې په ټولو لازم دی.

په دې منظومه کیسه کې د مور د مهربانۍ یوه داسې نمونه تاسو ولوسته چې مینه او مهرباني یې له بل چا سره نه شي پرتله کېدای. مور د مینې، محبت او مهربانۍ یوه داسې چینه ده چې دغه مینه او مهرباني یې د زړه په ځڅېدونکو وینو کې هم نارې وهي.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن په لوړ غږ ولولي او د شعر مفهوم دې په خپلو خبرو کې ووايي.

۲ـ زده کوونکي دې په متن کې د راغلې کیسې لنډیز په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې یې په ټولګي کې ولولي.

۳ـ زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. یوه ډله دې په شعر کې نومونه او بله ډله دې صفتونه پیداکړي او د ټولګیوالو په وړاندې دې ولولي.

۴ـ له دغې کیسې نه تاسې څه زده کړل، خپل نظر خپلو ټولګیوالو ته څرګند کړئ .

۵ـ په متن کې ارتباطي کلمې پیدا او لست یې کړئ لکه :

کال، پسرلی، هوا

۶ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي :

نیاز　　بې بها　　برپا　　ملغلره

۷ـ زده کوونکي دې د ماشوم په اړه کیسه ولولي او د دغې کیسې لنډ مقصد دې پخپلو خبرو کې ووايي.



## کورنۍ دنده

د مور د مهربانیو په اړه مو که کومه کیسه له چا اورېدلې وي او یا مو یاده وي په خپلو کتابچو کې یې ولیکئ او بله ورځ یې په ټولګي کې ولولئ.





# ښوونکی د ټولنې لارښود



ښوونکی د ماشومانو او ځوانانو لارښوونه کوي. د پوهې او علم پر ګاڼه یې سمبالوي. د نېکو لارو ګټې او د بدو لارو زیانونه ورته بیانوي.

په نننۍ نړۍ کې هر ډول پرمختګونه او هوساینه په ټولنه کې د انسان د پرله پسې زیار نتیجه او د ښوونکي برکت دی.

زده کوونکو ته لازمه ده چې د دغه لارښوونکو درناوی او احترام وکړي. په دې درس کې به د پوهاند رښتین د ژوند له پلوشو څخه د ښوونکي په اړه یو مطلب ولولئ.

- ښوونکی د ټولنې څه ډول معمار دی؟
- ښوونکي زموږ په روزنه کې کومه ونډه لري؟
- که ښوونکی نه وای دا نړۍ به څه ډول وه؟

علم او پوهه یوه رڼا او ځلا ده او ښوونکی او معلم د دغې رڼا خپروونکی دی.

علم او پوهه دودې او ترقۍ زینه ده او ښوونکی د دغې زینې جوړوونکی دی. علم د تورې تیارې مشال او د عقل د روښانتیا بله ډیوه ده. دغه مشال او ډیوه د ښوونکي د مازغو په رڼا روښانه کېږي. ښوونکی تل د خپل دماغ په ډیوه کې د فکر تیل سېځي، خپل مازغه ویلي کوي، شپې رونوي، د زړه وینې خوري او په ځان سخته تېروي دا ټول د دې لپاره چې د ناپوهۍ تیاره ورکه شي، خلک ښه او بد وپېژني او دښکلي او هوسا ژوند خاوندان شي.

ښوونکی په حقیقت کې د ژوندانه لارښود دی.

پوه، لایق، زیارکښ او زړه سواندي کسان د یو هېواد د لوړتیا او علمي ودې پخې ستنې دي. که دغه ستنې پخې او کلکې نه وي، نو د علم او پوهې ماڼۍ به هم بې کاره او بې خونده وي.

د علم وړانګې د ښوونکو په لاسونو په دنیاکې خپرېږي. د یونان ستر فیلسوف ارسطو د لومړي معلم، ابو نصر فارابي د دوهم معلم او ابن سینا د درېم معلم په نامه یادېږي. غرض دا چې د معلم لقب او نوم یو ستر او دروند نوم دی. په همدې وجه د ښوونکي مقام په ټولنه کې ډېر لوړ او جګ دی. څومره چې د ښوونکي مقام لوړ دی، نو هغومره یې وظیفه هم درنه او سخته ده. د هرې ټولنې وده او ترقي، پرمختګ او لوړتیا د هغوی د ښوونکو په زیار، کوښښ، اخلاص او له دندې سره په شوق او مینه پورې اړه لري. د یو ولس روښانه سبا د دوی په همت او زحمت پورې تړلی دی. د نن ورځې کوچنیان او ماشومان د دوی په وسیله د سبا ورځې پوهان او لویان کېدای شي.

ښوونکي د یو هېواد د باغ و بڼ مالیاران او د نوو بوټو او نیالګیو باغوانان دي. که دوی په خپله وظیفه کې د کوچنیانو په روزنه او پالنه کې لږ غفلت وکړي، نو د وطن د علم او پوهې، ودې او ترقۍ باغ و بڼ به مړاوی او سپېره پاتې شي. ټول ماشومان د ښوونکو سره یو امانت دی د دغه امانت ساتنه، پالنه او روزنه د دوی دنده ده.

د ماشومانو د علم او پوهې زیاتول، د دوی د خویونو او اخلاقو سمول، په دوی کې





د خپل ملت، خاورې او هېواد مينه اچول او په پای کې له دوی نه د سم فکر او مزغو خاوندان او غوره سړي جوړول، د ښوونکو دنده ده. دا يو داسې پور دی چې بې له اداکولو څخه په بل هيڅ ډول نه خلاصېږي. ترکومې اندازې چې شاگردان علم او پوهې ته ضرورت لري، هغومره سمې روزنې او پالنې ته هم اړ دي. علم د انسان جوهر او روزنه يې ښکلا او ځلاده. د يو مخلص او پوه ښوونکي وظيفه دا ده چې دغو دواړو خواوو ته پوره پاملرنه وکړي او د خپل هېواد تاند نيالگي داسې وروزي چې هم يې خلک سيوري ته کښېني او هم يې له خوږو مېوو څخه گټه واخلي.

لنډه دا چې د معلمانو دنده ډېره درنه او مهمه ده، خو ورسره ډېره پاکه او سپېڅلې هم ده. نو ښايي چې ټول ښوونکي په ډېر اخلاص او مينه خپله پاکه وظيفه سر ته ورسوي او د سالمې پوهنې په لوړولو او خپرولوکې شپه او ورځ زيار او کوښښ وکړي.

**د متن لنډيز:**

د ښوونکي کلمه که څه هم خلکو ته په ښکاره يوه ساده کلمه ښکاري او د ښوونکي دنده يوازې ښوونځي ته په تلو راتلو پورې تړي، خو داسې نه ده.

د ښوونکي دنده ډېره درنه او مهمه ده. مقام يې ډېر لوړ او نوم يې سپېڅلی او مقدس دی. نن ورځ چې په نړۍ کې د ژوند څه پرمختگونه او اسانتياوې وينئ، نو لومړني لارښوونکي يې معلمان دي، ځکه چې د نړۍ پوهان، سياسي څېرې، مخترعين او د هېوادونو واکمنان د ښوونکي د زيار په پايله کې راڅرگند شوي دي. لازمه ده چې د زړه له کومې د ښوونکي درناوی او احترام وشي. ښوونکي ته هم پکار ده چې خپله دنده په دقت، اخلاص، صداقت، سپېڅلتيا او د مسؤوليت له مخې پر مخ بوځي.



## فعالیتونه

۱ـ څو زده کوونکي دې له ښوونکي نه وروسته لوست په وارسره ولولي او په وار سره دې د درس مفهوم په خپلو خبرو کې ووايي.

۲ـ زده کوونکي دې گران لغتونه په کتابچو کې وليکي او بيا دې يې معنا کړي.

۳ـ زده کوونکي دې له لوست څخه مترادف الفاظ راوباسي او پرتخته دې يې وليکي.

۴ـ په لاندې معنا شوو لغتونو کې سم ته (س) او ناسم ته (ن) په پنسل وليکئ.

- لايق: چارواکی
- زيارکښ: زحمت کښ
- وړانگې: وريځ
- مشال: څراغ، رڼا
- هوسا: لالهاند
- سپېڅلی: پاک

۶ـ لاندې جملې تکميل کړئ؛!

- علم او پوهه يوه ................ او .................. ده.
- ښوونکی په حقيقت کې د ............. لاربنود دی.
- د علم وړانگې د ................. په لاسونو په ................... کې خپرېږي.



## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې دښوونکي په اړه په کور کې يوه، يوه ليکنه وکړي چې شپږ کرښې او يا تر دې زياته وي او بله ورځ دې په ټولگي کې واوروي.







# نړیواله ادبي څېره: ټاګور



نړیوال هنرونه او فکرونه نړیوال ارزښت لري. دغه راز هنرونه او فکرونه نړیواله شتمني وي، هر انسان ترې ګټه اخیستلای شي. لیکوال او شاعر چې څه لیکي او څه وایي، د نړیوالې ټولنې لپاره وي، خو د ډېرو لږو فکر او هنر دومره پوخ وي چې نړیوال شهرت ور په برخه کړي.

دغه فکر او هنر هر انسان ته یو ځانګړی پیغام لري. له دغه فکر و هنر څخه بیا هر څوک له خپلې هنري لېوالتیا سره سم خوند اخلي.

په اوومه ټولګي کې مو د اندرسن په اړه معلومات تر لاسه کړل، په دې لوست کې یوه بله نړیواله څېره ټاګور درپېژنو.

- تاسې که کومه نړیواله ادبي شخصیت پېژنئ په اړه یې خبرې وکړئ.
- د ټاګور کوم شعر یا کتاب مو لوستی؟

ټاګور يوه نړيواله ادبي څېره ده. ټاګور مشهور شاعر او ليکوال دی. په ډرامه ليکنه کې يې ډېر لوی لاس درلود. ناولونه او داستانونه يې هم ليکلي دي.

ټاګور د ۱۸۶۱ م. کال د مې په اوومه د هندوستان د کلکتې په ښار کې زېږېدلی دی. کورنۍ يې شتمنه وه او د علم او هنر له امله يې په بنګال کې ځانګړی شهرت درلود. د دې کورنۍ دلوېديځ له تمدن سره هم له يوې نيمې پېړۍ را په دې خوا اشنا وه. د خپلو نيکونو علمي، ادبي او هنري ميراثونه يې ساتل.

له همدې امله د ټاګور په شخصيت کې زاړه کره وړه او نوې ښکلا دواړه ليدل کېږي. ټول هندوستان تر اوسه د ټاګور په څېر بل پراخ نظره، خواخوږی او هوښيار اديب ونه موند.

ټاګور که د خپل وخت د پرمختللي ژوندانه له اسانيتاو و برخمن و، نو د خپل وخت د بې وزلو وګړو له ژوندانه څخه هم ناخبره نه و. هغه دغه دواړه د سر په سترګو ليدلي وو. دغو متضادو زده کړو او تجربو د ټاګور شخصيت ډېر هر اړخيز (جامع) کړ.

رابندر ناتهـ ټاګور د نړۍ ببلا ببلو هېوادونو لکه انګلستان، جرمني، امريکا، سيلون، چين، ايټاليې، کاناډا، ويتنام، کمبوديا، لاوس، برما، روسيې او ايران ته سفرونه کړي دي. په دغو هېوادونو کې يې له ولسمشرانو او وزيرانو رانيولې تر بې وزلو وګړو پورې ليدلي کتلي او د هغو له حال څخه يې ځان خبر کړی دی.

په ببلا ببلو سفرونو کې له ببلا ببلو وګړو سره د هغه اړيکو او ليدنو کتنو هغه ته ډېره تجربه ور په برخه کړه. هغه په لسګونو ډرامې د اشعارو مجموعې، لنډې کيسې او رومانونه ليکلي دي.

د رابندر ناتهـ ټاګور ځينې اثار دادي:

| | |
|---|---|
| ۱ـ د يوه شاعر نکل | ۲ـ تصويرونه او سندرې |
| ۳ـ د ځنګل ګل | ۴ـ د فطرت انتقام |
| ۵ـ مات زړه | ۶ـ د وړکتوب سندرې |
| ۷ـ د اروپايي سيلاني ليکونه | ۸ـ د لمر سيوری |





۹_ د ماښام سندرې — ۱۰_ تېز او تونډ
۱۱_ خطرناک ښکار — ۱۲_ د عالمانو پاچا او نور
۱۳_ د سهار سندرې

د رابندر ناتهـ ټاګور ځينې اثار په پښتو ژباړل شوي دي، لکه: کابلي والا، ګيتا نجلي، تاج او ځينې نور. ګيتا نجلي عبدالرؤف بينوا ژباړلی او لومړی ځل په ۱۳۳۶ هـ. ش. کال په کابل کې چاپ شوی دی. د ټاګور ګيتا نجلي نړيوال شهرت لري. او د نوبل نړيوال جايزه يې ګټلې ده.

دګيتا نجلي د متن څو بېلګې:

هغه وخت چې زما زړه سخت او وچ شي، نو ته پر ما د رحم باران وکړه راشه!

کله چې ژوند محبت له لاسه ورکړي؛ نو ته د نغمې په پرده کې راشه! کله چې شاوخوا د هنګامه زېږوونکو مشاغلو شور پورته شي او ما د باندې وباسي، نو ته ای زما د سکوت خاونده! د خپل سکون او ارام سره راشه! کله چې زما بېنوا زړه د زندان په يوه ګوټ کې غلی کېښېني؛ نو ای زما پادشاه! ور مات کړه د شاهانه برم او دبدبې سره راشه؛

کله چې زما د زړه پر ارزو باندې د باطلو او هامو غبار پرېوځي نو ته ای يوازې پاکه! ای ته يوازې ويښه! د خپلې برېښنا او تالندې سره راشه!

×××

تا په سيوري کې ځان پټ کړی دی، اې زما ګرانه! ته چېرې د ټولو تر شا ولاړ يې؟ دوی تا ټېل وهي، ستا له څنګه د خاورو پر ډک سړک باندې تېرېږي، او ستا هيڅ خيال نه ساتي.

زه دلته له څو ګړيو راهيسې نذرونه په لاس انتظار کومه، لاروي تېرېږي او يو ـ يو ګل مانه اخلي ـ اوس نژدې ده چې ټوکری تشه شي.

دګهيځ وخت تېر شو او د غرمې هم، د ماښام په سيوري کې زما سترګې له خوبه پټې

پټې کېږي. هر څوک خپلو کورو ته ځي، ما ويني راباندې خاندي او ما محجوبوي. زه د گداگرې نجلۍ په شان پلو پر مخ ناسته يم او کله چې دوی ما وپوښتي چې زه څه غواړم؟ نو زه سترگې کښته واچوم او هغو ته هيڅ ځواب نه ورکوم.

اه، رښتيا هم زه هغو ته دا کله ويلای شم چې ((زه تاته انتظار لرم، تا د راتلو وعده کړې ده)) زه له شرمه څنگه ويلای شم چې ((زه بې له دې غريبته نور څه جهيز (د ورکولو لپاره نه لرم))

اه، ما دا غرور دخپل زړه په کومې کې پټ کړی دی، زه پر وښو ناسته اسمان ته گورم، ستا ناڅاپه راتگ په ډېر شان او شوکت په خوب وينم چې: ټولې روڼاوې پرې ځلېږي، ستا د بگۍ زرين بيرغ رپيږي، ټول وگړي حيران ولاړ گوري چې ته راکوز شې زما لوري ته راځې ددې لپاره چې ما له ځمکې پورته کړې، او يوې داسې بې وزلې نجلۍ ته د خپل څنگ سره د کښېناستو ځای ورکړې چې له شرم او نخو ته داسې رپېږي لکه د ونې پاڼه چې نسيم رپوي ... ((خو وخت تېرېږي او تر اوسه لا ستا د بگۍ د ارابو اواز نشته؛ ډېر د برم او خوښۍ جلوسونه له خپلو سحر کاريو سره تېر شول ـ ايا ته به هم هغه يې چې د ټولو تر شا په يو سيوري کې پټه خوله ولاړ يې؟ او زه به همدغه يم چې ستا په انتظار کې به ژاړم او په ناکامو ارزوگانو به خپل زړگی ستومانه ساتم؟

**د متن لنډيز:**

رابندر ناتهـ ټاگور د ديوندر ناتهـ ټاگور زوی دی. په ۱۸۶۱م. کې په کلکته کې زېږېدلی دی. پلار يې لوی شتمن او مذهبي لارښود (مهاريشي) و. په لندن کې يې د حقوقو په څانگه کې زده کړې کړې وې. اثار يې ډېر لوړ ادبي او هنري ارزښت لري. ځينې کتابونو لکه: گيتانجلي يې د نوبل جايزه اخيستې ده. ټاگور په ۱۹۰۱م. کال د شانتي نيکيتن بنياد کښېښود چې بيا په راوروسته کلونو کې په يو لوی پوهنتون بدل شو.







ټاګور



## څرګندونې

(۱) نوبل: دا یوه نړیواله ډالۍ (جایزه) ده چې هر کال په بېلا بېلو علمي او ادبي برخو کې خورا مهمو شخصیتونو ته ورکول کېږي.

(۲) شانتي نیکیتن: (دارالامان) د ټاګور پلار د یوندر ناتهـ ټاګور په دغه ځای کې یو باغ جوړ کړ. خلک به د مراقبې او تفکر لپاره ورتلل او د هیڅ دین او مذهب خلک ترې منع نه وو. ټاګور بیا په ۱۹۰۱ م. کال کې دلته یو ښوونځی جوړ کړ چې وروسته په پوهنتون بدل شو او د شانتي نیکیتن په نوم یاد شو.




۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنو ته ځوابونه ووايي:

- را بندر ناتهـ ټاګور د چا زوی او په کوم ځای کې زېږېدلی و ؟
- د رابندر ناتهـ ټاګور کوم کتاب د نوبل جایزه اخيستې وه؟
- د رابندر ناتهـ ټاګور د څلورو کتابونو نومونه واخلئ؟
- د ټاګور کورنۍ له مالي پلوه څه ډول وه؟

۲ـ د ګیتا نجلي همدغه نمونه چې دلته راغلې ده ولولئ او پرمفهوم باندې يې وار په وار خبرې وکړئ.

۳ـ په دغو بېلګو کې کوم ډول نومځري پيداکولای شئ، ځانګړي، ملکي، مبهم او نور په نښه يې کړئ.

۴ـ لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروئ:

هنګامه، برم، او هام، محجوب، نخوت

۵ـ ټاګور دکوم ځای شاعر او ليکوال و ؟

الف ـ د هندوستان　　　ب ـ د بنګال　　　ج ـ پاکستان




د دې لوست له ټول متن څخه ستاينومونه راواخلئ او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ. سباته يې ټولګيوالو ته واوروئ. له دغو ستاينومونو سره د هغوی ضد هم په خپله کتابچه کې وليکئ.



شلم لوست

# ښکالو



بيان په دوو ډولو کېږي، په نثر او په نظم، د نثر برخه پراخه ده او هر ډول مطلب او پيغامونه پکې په اسانۍ ځای پر ځای کېدای او لوستونکو ته رسېدای شي. همدا لامل دی چې نثري پانګه تر نظمي پانګې ډېره زياته وي. له بلې خوا نظم ښه يادېږي او په اسانۍ ذهن ته سپارل کېږي. نثرونه بېلا بېل ډولونه لري. يوه ډول ته يې هنري يا ادبي نثر وايي. ادبي نثر هغه وي چې له ژبني هنره پکې کار اخيستل شوی وي. ادبي نثر به هرو مرو لوړ پيغام لري، خو د پيغام د بيان لپاره ليکونکی داسې کلمات غوره کوي چې د لوستونکي احساسات او عواطف راوپاروي. ادبي نثر انسان د لورېينې او ښېګڼې لورته هڅوي. په انساني ټولنه کې د مينې، دوستی، سولې او امن د رامنځته کېدو غوښتنه کوي.

■ که تاسې کوم ادبي نثر لوستی وي نو و واياست د چا او موضوع يې څه وه؟

■ که کومه لنډه کيسه مو لوستې وي، د هغې نثر له نورو عادي نثرونو سره څه توپير درلود؟

د سپلمۍ لوېو لوېو ګنړو بوټو او ګورو پاڼو کې، هوسۍ له څر نه سر پورته او شخوند یې بند کړ، غوږونه یې بوڅ کړل، حیرانه ودرېدله؛ داسې چې له ځانه نه وه خبره. ملخ د سپلمۍ په پاڼه ورو ورو، غلی غلی راغی، د هوسۍ غوږو ته نژدې شو:

هوسۍ! څه دي؟ ولې حیرانه یې؟ ولې خپه یې؟ او هو! دا اوښکې! ولې واښه نه خورې؟ پسرلی تېر شو... واښه وچ شول څه! ؟که تږې یې؟

هوسۍ په یوه نېب یوه طرف ته سترګې بکې کړې دي او غوږونه تکځ.

ملخ بیا وویل: د چا ښکالو ده څه؟

هوسۍ دیکه وخوړه: هو! نه واښه وچ دي او نه تږې یم ښکالو ده. د چا ښکالو! د چا د یا د ښکالو!!

ملخ : پوه نه شوم.

هوسۍ: ته لا نه وې، دا سپلمۍ وړې وړې وې، زه او اشنا مې دلته څرېدو، ښکالو شوه، ما دغه شان غوږونه بوڅ کړل، اشنامې دغه شان وویل، همدغه شان لکه تا چې وویل...ډز شو... موږ ټوپ کړ، زه لیرې لاړم. اه ... پل مې واخیست، وینې پسې لاړم ان د پاچا تر باغه ... د پاچا د زوی سر کلی و... سندرې ویل کېدې، غوښې وریتېدې، بېګمې خند ېدې. ملکه په تخت ناسته وه، زما د سترګو په اوښکو پوه شوه، لکه چې ته پوه شوې. اخر زنانه عالم و. ما وویل بې بې مېرمنې! زما د اشنا تیکې ستا باورچي خانه کې وریتېږي، خو دا څرمن یې ماته راکړه. زه به یې په یوه ونه کې اویزانده کړم... ورته به ګورم د زړه سود به پرې کوم.

ملکې وویل: نه څرمن تاته نه شي درکولی. سوېلو وویل: نه، هیچېرې نه! دې نه به موږ تمبل جوړوو.

ګوره غوږ کېږده! نن د هغه پاچا د زوی سنت ګیري ده ... تمبل وهلی شي. دغه اواز اورې؟ دا زما د اشنا د څرمنې تمبل دی... په ما یې اواز خوږ لګي. زما پرې سود کېږي. ښکالو ده... زه پرې پوهېږم، ته پرې نه پوهېږې... سود پرې کوم سود!!

((سید راحت زاخېلي))





## د متن لنډيز:

پورتنۍ کيسه د هوسۍ او ملخ ترمنځ د پوښتنو او ځوابونو په بڼه راغلې ده. کيسه داسې ده چې هوسۍ او ملخ په يوه ځرځای کې اوسېږي. هوسی څه ښکالو اوري، يو دم تېر يادونه ور په زړه کېږي. غونې يې ځيږ شي. د هماغه دړز انګازې يې يو ځل بيا په ذهن کې راغبرګې شي چې د ژوندانه ګران ملګری يې ترې جلا کړی و.

هوسۍ ملخ ته خپله پخوانۍ کيسه کوي. وايي چې زه او يار مې يوه ورځ همداسې په دې ځای کې څرېدو چې څه ښکالو شوه، يو ناڅاپه دړز شو ما ليرې منډه کړه چې ګورم ملګری مې نه و. بېرته راوګرځېدم منډ مې واخيست او د پاچا ترکوره لاړم. ګورم چې د ملګري غوښه مې پخېږي، له ملکې نه مې وغوښتل چې د ملګري څرمن مې راکړي او د يادګار په توګه به يې په يوه ونه کې ځوړنده کړم، د زړه سود به پرې کوم، خو ملکې انکار وکړ او ويې ويل چې له دې څرمنې نه موږ تمبل (چمبه) جوړوو.

اوس د پاچا د زوی سنت ګري ده، له هغې څرمنې نه يې تمبل جوړ کړی، د پاچا د زوی په سنت ګرۍ کې وهل کېږي او زما پر زړه د خپل يار او اشنا يادونه راورېږي.

## د ليکوال پيژندګلوی:

سيد راحت زاخيلي دسيد فريح الله زوی، په ۱۳۰۳ هـ . ق. کال د نوښار په زاخيلو کې زېږېدلی دی. زاخيلی غښتلی ليکوال او منلی شاعر و. د ژباړې په فن کې يې هم پوخ لاس درلود. په ناول او لنډه کيسه ليکنه کې يې ډېر شهرت درلود. د پېښور لومړنی پښتو اخبار «افغان» د ده په اهتمام راوتلی دی. د ډېرو کتابونو لکه ماه رخ، لغات افغاني، تاريخ افغانستان، د حضرت علي کرم الله وجههُ اقوال، شلېدلې پنه، د زړه درد، داغستان او نورو ليکوال دی. په ۱۳۸۳ هـ . ق. کې يې له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې دي.




۱_ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او بیا دې په وارسره د کیسې مفهوم په خپلو خبروکې ووایي.

۲_ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- کیسه د څه شي په اړه ده؟
- په کیسه کې کوم کرکټرونه راغلي دي؟
- د کیسې پېښه څه ډول ده؟

۳_ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي.

_ ښکالو _ سپلمی _ نېب _ بکې _ تکئ

۴_ که د زده کوونکو دغې کیسې ته ورته کومه کیسه په یاد وي په ټولګي کې دې په لوړ غږ ووایي.

۵_ زده کوونکي دې په درې ډلو وویشل شي: یوه ډله دې په متن کې نومونه، بله ډله صفتونه او درېیمه ډله دې ضمیرونه پیدا کړي او بیا دې یې د هرې ډلې استازی په ټولګي کې په وار سره د لست له مخې ووایي.

۶_ زده کوونکي دې په لوړ غږ کیسه داسې ووایي چې د اواز اوچتول، نرمول او وقفه (ځنډ) په نظر کې وساتي. نور زده کوونکي دې لوستل وڅاري.




زده کوونکي دې په خپله خوښه په کور کې د کوم لیکوال یوه لنډه کیسه خوښه او په کتابچه کې دې ولیکي یا دې له مور او پلار، یا نیا او نیکه څخه کومه کیسه واوري او د هغې لنډیز دې په کتابچه کې ولیکي.








# مور ولې کيسې لولو؟



له خپل مور و پلار، مشرانو او همزولو څخه به مو ډېرې کيسې اورېدلې وي. ساعت به مو پرې تېر شوی او خوند به مو ترې اخيستی وي. پر ساعت تېرۍ او خوند اخيستو سربېره کيسې نورې ښېګڼې هم لري. په کيسو کې روزنيز، اخلاقي او معلوماتي مفاهيم هم نغښتي وي. له کيسو څخه مو روزنېزې، اخلاقي او معلوماتي ښېګڼې هم تر لاسه کولای شو.

ځينې کيسې په يوه ولس يا يوې ژبې پورې اړه لري، خو ځينې کيسې بيا په څو ولسونو او څو ژبو کې شريکې وي. که کيسه په يوه ولس يا يوې ژبې پورې هم اړه ولري، نو ډېرې داسې روزنيزې او اخلاقي ښېګڼې پکې وي چې ټول ولسونه ترې د خپل ژوندانه لپاره ګټه اخيستلای شي.

- کيسې څه ښېګڼې لري؟
- له کيسو نه څه زده کوو؟

## حکایت

یو عالم د یو پاچا په وړاندې خبرې کولې. ناګهانه یې د خبرو په منځ کې وویل چې په هندوستان کې یوه ونه ده که د هغې ونې مېوه څوک وخوري نو هغه سړی به زوړ نه شي او نه به مړ شي. پاچا چې دا خبره واورېدله، نو په هغه ونې باندې مین شو، سودا واخیست چې دا به څه رنګ پیدا شي. لیکن د هغه عالم نه یې پوښتنه نه کوله چې دا ونه به چېرته وي او څنګه به وي. مګر چې د ده پرې ډېر باور و، هغه سړی یې په طرف د هندوستان رخصت کړ او ډېر مال یې ورته ورکړ، ورته یې وویل چې دا دولت لګوه او نور به هم درلېږم، خو هله بېرته راځه چې ماته د دغې ونې مېوه راوړې.

قاصد روان شو چې هندوستان ته ورسېده، نو له خلکو نه به یې هر ځای پوښتنه کوله او ویل به یې چې هغه ونه په کوم ځای کې ده چې سړی یې مېوه وخوري، نو بیا همېشه ژوندی وي او هیچرې نه زړېږي چې خلکو به دا خبره واورېدله، نو چا به ور پورې خندل چا به ورپورې ټوکې کولې، چا به ویل چې دا لیونی شوی دی، چا به ویل چې موږ ته معلومه نه ده مګر چې دا سړی ورپسې ګرځي، نو معلومېږي چې دا به رښتیا چېرته وي. چا به ویل چې په پلانې ځنګل کې که چېرې وي، نو وي به او بل ځای مې ګومان نه کېږي چې ګوندې پیدا شي. چا به ویل چې په پلانې ځنګل کې یوه لویه ونه ده چې سر یې چا ته نه ښکارېږي او بېخ یې هم نه معلومېږي او مېوه یې هم چا له په لاس نه ورځي که چېرې هغه وي نو شک نشته.

هر چا به ورپورې مسخرې کولې او دې غریب به په ځنګلونو ، غرونو ، میرو او په بیابانونو ګرځېده. حاصل دا دی چې یو خوا بل خوا وړاندې وروستو ښکته پورته ډېر طلب یې وکړ، مګر هیڅ په حال پوه نه شو، نو بېرته راوګرځېده چې وطن ته راته ډېر خپه و او له ځان سره یې ویل چې پاچا ته به څه عذر کوم. په یو ځای کې یې شپه شوه په هغه ځای کې یې واورېده، یو سړي و ویل چې زموږ په دې کلي کې لوی عالم دی او بې شانه ښه سړی دی.





قاصد په زړه کې و ویل چې بارې ورشم که څه دعا راته وکړي، نو دستي پاڅېد هغه عالم ته ورغی چې ملاقات یې ورسره وشو، نو ورته ویې ویل چې صاحبه دعا راته وکړه چې ایمان مې خدای ﷻسلامت کړي او په خیر سره وطن ته ورسېږم. هغه دعا ورته وکړله او بیا یې ترې پوښتنه وکړه چې چېرته تللی وې.

قاصد ورته دا ټوله کیسه و ویله. عالم چې واورېده، نو ورته یې و ویل چې تاسو د هغه خپل عالم په خبره نه یې پوه شوي. هغه ونه بله نه ده هغه ونه د علم ده یعنې د علم مېوه چې څوک وخوري، نو هغه سړی به همېشه ژوندی وي او د همېشه ژوندون څه معنا ده، هغه معنا دا ده چې خدای ﷻ وپېژني، نېکي بدي ورته معلومه شي، د نېکۍ عمل کوي او له بدۍ نه ځان ساتي، کتابونه تصنیف کاندې شاگردان ترې پاتې شي، نو هډو که دا سړی په تن مړ هم شي هیڅ غم یې نشته، ځکه چې هلته یې روح ژوندی وي او دلته یې نوم ژوندی وي او ثواب یې داسې کېږي، لکه یو ژوندی سړی چې نېکي کوي او ثواب یې کېږي.

قاصد ورته و ویل چې صاحبه موږ هم دومره پوهېږو، نادانان نه یو که چېرې هغه علم یاد کړی وی، خو موږ به پوه شوي وو چې علم وایي، ولې هغه د ټولو خلکو د وړاندې ونه یاده کړې ده او په دې خو هرڅوک پوهېږي چې علم د یو څیز نوم دی او ونه د بل څیز.

هغه عالم و ویل چې ته بیا پوه نه شوې، تا له مثال په کار دی چې ښه پوه شې. گوره یو سړی وي نو د چا پلار وي او د چا زوی وي او د چا لمسی وي او د چا نیکه وي او د چا خوربی وي او د چا ماما وي او د چا تره وي او د چا وراره وي او د چا ترورزی وي او د چا تربور وي او د چا ورور وي او د چا اشنا وي او د چا دښمن وي او د چا دوست وي، نو اوس ته گوره همدغه یو سړی دی او هر نوم له دې نومونو چې په خپل ځای کې ورته څوک وایي، نو ویلی شي که نه شي؟

قاصد و ویل چې ښېشکه ویلی شي. نو هغه عالم و ویل چې داسې علم ته هم دواړه نومه ویلی شي. که دې خوښه وي نو ورته علم وایه او که دې خوښه وي، نو ورته د

ژوندانه ونه وایه، دواړه نومونه یې برابر دي هیڅ فرق په کې نشته.

قاصد چې دا خبرې واورېدلې تسلي یې د زړه وشوله او له عالم نه یې رخصت واخیست او د خپل کور په طرف راروان شو چې ښار ته ورسېده پاچا ورته په امېد کې و چې دربار له ورغی پاچا ترې پوښتنه وکړله، ویل یې چې و وایه مېوه دې وموندله او که نه دې ده موندلې؟

قاصد ورته له سره کیسه شروع کړله، خپل ربړېدل او په ملکونو او په غرونو او په بیابانونو گرځېدل او د خلکو مسخرې کول ټول حال یې ورته بیان کړ. چې پاچا واورېده، نو ډېر خپه شو، ویې ویل چې ستا ربړ عبث شو او زما مطلب و نه شو. پس له هغه قاصد ورته د هغه عالم خبره په ښه شان سره ښېله ښېله، جدا جدا واوروله. چې پاچا واورېدله ډېر خوشحال شو او قاصد له یې د گرځېدلو له مشقت نه دوه برابره دولت ورکړ او پس له هغه باقي عمر د علم او د عالمانو په ساتنه او په پالنه کې شو او حکم یې وکړ چې هرڅوک دې واوري چې علم نه په واړه دی او نه په زاړه دی، خو زده کړه دې کوي که لوی وي او که وړکی وي.

((مولوي احمد))

**د متن لنډيز:**

دغه کیسه د علم او پوهې د ارزښت په اړه ده. په کیسه کې چې کومه ونه یاده شوې د هغې نه موخه علم او پوهه ده چې علم نه زړېږي او تل تر تله وي. که یو عالم له ژونده سترگې پټې کړي بیا هم د خپل علم له امله یادېږي. او نوم او یاد یې په کتابونو او د شاگردانو په ذهنونو او ژبو کې گرځي او دغسې عالمان او پوهان د خپل علم له برکته تر پېړیو، پېړیو پورې ژوندي وي.







## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې کیسه په چوپه خوله ولولي او بیا دې یې مقصد په ټولګي کې ووایي.

۲ـ زده کوونکي دې د کیسې یو یو پراګراف په وار سره ولولي او خبرې دې پرې وکړي.

۳ـ زده کوونکي دې د کیسې مطلب په خو لنډو کرښو کې ولیکي او په ټولګي کې دې یې په وار سره ووایي.

۴ـ زده کوونکي دې په لاندې پاراګراف کې نومونه په نښه کړي او ودې وایي چې کوم ډول نومونه دي:

ګوره یو سړی وي، نو د چا پلار وي او د چا زوی وي او د چا نمسی وي او د چا نیکه وي او د چا خوربې وي او د چا ماما وي او د چا تره وي او دچا وراره وي او د چا ترورزی وي او د چا دښمن وي او د چا دوست وي.

۵ـ زده کوونکي دې په کیسه کې نومځري (ضمیرونه) پیداکړي چې کوم ډول نومځري پکې راغلي دي؟

۶ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي.

- قاصد ولې په ځنګلونو کې ګرځیده؟
- پاچا قاصد په څه شي پسې لیږلی و؟
- قاصد د پاچا لپاره څه راوړل؟
- پاچا د قاصد له خبرو نه وروسته څه پرېکړه وکړه؟

۷ـ زده کوونکي دې د کیسې ځایونه او اشخاص په ګوته کړي چې کوم ځایونه او کوم اشخاص په کیسه کې راغلي دي؟






زده کوونکي دې لاندینۍ کیسه په کورکې په غور سره ولولي، لنډ مطلب دې یې په خپلو کتابچو کې ولیکي او سبا ته دې یې د ټولګیوالو په وړاندې واوروي.

وايي چې اوښ، غوايي او پسه سره ملګري شول په لاره روان وو، د وښو يوه ګېډۍ يې ومونده. پسه وويل چې دا واښه لږ دي ټول پرې نه مړېږو، که یې ووېشو، نو د یوه کار هم پرې نه کېږي. ښه به دا وي چې په موږ کې کوم چې مشر وي همغه دې وخوري، ځکه چې مشر په هر ځای کې د عزت وړ او حقدار وي.

اوس نو راځئ چې د خپل عمر زیاتوالی ثابت کړو. پسه وويل: چې زما تاریخ تر ټولو زیات دی، ځکه چې د هغه پسه سره د خپلوۍ اړيکه لرم چې د حضرت ابراهیم لپاره د جنت نه رالېږل شوی و، نو دا واښه زما حق دی، تاسو دواړه باید صبر وکړئ.

غوايي وويل: چې ته خو تر ما ډېر کشر یې زه د هغو غوایانو تربور یم چې حضرت ادم په لومړي ځل په جغ تړلي وو او ځمکه یې پرې قلبه کړې وه، نو له دې امله دا واښه زما حق دی، زه تر تاسو دواړو مشر یم.

په دې وخت کې اوښ غړانګه کښته کړه او د وښو ګېډۍ یې په خوله کې اوچته کړه او ویې ویل: چې زما خو د عمر تاریخ ثابتولو ته څه اړتیا نشته؛ ځکه هر چا ته معلومه ده چې زه له بدنه لوی او غټ یم او بل ښوک په لوی والي او څواک کې د ځان جوګه نه وینم، نو ښکاره خبره ده چې په عمر کې هم تر تاسو زیات او پخوانی یم. دا ګېډۍ زما حق دی، باید زه یې وخورم.











# خوږ ژبی شاعر سید حسن خان



د پښتو ادب معاصره دوره ډېر نومیالي لیکوالان او شاعران لري. دغو نومیالیو هر یو پخپل وار د خپلو شعرونو او لیکنو له لارې د ټولنې دردونو ته انعکاس ورکړی او د اصلاح او سمون لپاره یې شعرونه ویلي او په نثر کې یې لیکنې کړې دي.

د دغو نومیالیو لیکوالو او شاعرانو د فکر او ادب ذخیره موږ ته د کتابونو په شکل پاتې ده او زموږ د معاصر ادب یوه لویه ذخیره ده. په دغه ډله کې یو هم سید حسن خان دی چې په دې لوست کې به یې وپېژنو.

۱ـ په معاصرو شاعرانو کې کوم شاعران پېژنئ؟

۲ـ د خوږ ژبي شاعر سید حسن په اړه معلومات لرئ؟

سید حسن خان ((حسن)) د سید حسین پاچا زوی دکونړ له سیدانو څخه و. په ۱۲۷۰ هـ. ش. کال د لغمان په چار باغ کې زېږېدلی دی. لومړنۍ زده کړې یې په خصوصي توګه سرته رسولې وې. بیا یې نورې زده کړې په عسکري ښوونځي کې پای ته ورسولې او د هغه وخت د حرب په وزارت کې یې خپله دنده پیل کړه چې د ژوند په وروستیو کې یې د فرقه مشر په رتبه د حرب په وزارت کې د حربي رئیس په حیث کار کاوه.

ښاغلی سید حسن که څه هم په عسکري چارو کې بوخت و، خو د ځانګړې مطالعې له لارې یې په ډېرو مسایلو کې ژور معلومات درلودل. همدارنګه له پښتو ژبې او ادب سره یې زیاته مینه وه او په پښتو شعر کې د لومړۍ ډلې په شاعرانو کې حسابېده. د سیدحسن د شعر ژبه روانه، خوږه او شعر یې په نادرو خیالاتو او مفاهیمو ښکلی و.

په شعر کې یې انتقادي مضمونونه هم زیات وو. د پښتو له پخواني ادب سره یې هم ژوره مینه لرله، تل یې مطالعه کوله. دغه شعر یې د لوړ خیال او ژور فکر څرګنده نمونه ده:

شانې ستا سر دې په سل ځایه اره شي
راوړه تا پرېشاني د زلفو کوره ته
هوسۍ غوټه کړه خپل مشك د زړه په ناف کې
چې د ستا د زلفو بوی خوره شو هر لوري ته

د غازي امان الله خان له واکمنۍ نه وروسته چې په هېواد کې کورنۍ اړو دوړ رامنځ ته شو، سید حسن خان په ننګرهار کې د ((کور غم)) په نامه یو اخبار راوایست. هغه د ملي یووالي ټینګ پلوی و چې دغه پیغام یې د هېواد د بقا سره تړلی ګاڼه او په خپلو شعرونو کې یې خلکو ته رساوه.




وې چې غونډ شئ متفق شئ
ټول وطن به مسخر شي سنا سې زور ته
کنه خوار ذلیل به کرځئ په دنیا کې
نشانه به شئ د ټول عالم پیغور ته

لکه څنګه چې د نوموړي لوړه او خوږه شعري طبعه وه، هماغسې په مجلسونو کې هم ډېر صمیمي و. مجلس یې خوږ او بې تکلفه و. ښاغلی عبد الرؤف بېنوا د سید حسن خان د شعر په اړه داسې وایي:

((د ده اشعار زیاتره اصلاحي، تنقیدي او نهضتي روح لري او د وطن خواهۍ لوړ احساس پکې ځلېږي. د ده له اشعارو څخه څرګندېږي چې ده غوښتي دي چې پخپلو سوځوونکو اشعارو ولس راویښ او د هغوی د افکارو لاره اصلاح کړي. حتٰی کله کله په ډېرو سختو او درشتو الفاظو د قوم نا اهلان تنبیه کوي.))

څرنګه چې دی یو مبارز و، نو تل یې د استبداد په وړاندې دریغ لاره. له دې امله یې د ژوند ډېره برخه د وخت په زندانونو کې تېره کړه.

دغه خوږ ژبی او نومیالی شاعر په ۱۳۱۹ هـ. ش. کال په کابل کې وفات شو.

د سید حسن خان حسن د کلام نمونه داده:



په نغمه لکه بلبل غږېدل زده کړه
پښه خوله وینا د ګل له بلبل زده کړه
رخت په سر کړه له غنچې نه رابهر شه
په هوا لکه وږمه چلېدل زده کړه
د اغزي په څېر د ګل سره همراز شه
په ځېره صورت د ګلو ساتل زده کړه
نسترن شه په اغوش سرو ازاد کړه
په هر بوټي د ګلشن تاوېدل زده کړه

رژیدو له وېرې نه غورځېږې ولې
اندېښنه پرېږده غوټې توکل زده کړه
کورني مرغه په شان به څومره ژوند کړې
د شاهین په دود ازاد الوتل زده کړه
که د نورو اسایش او ارام غواړې
کهواره غوندې د ځان کړېدل زده کړه
کړندی شه کاروان هی کړه منزل لنډ دی
د جرس په اواز تلل او راتلل زده کړه
راحت پرېږده زحمت واخله سید حسنه!
د وطن په درد و غم ژړېدل زده کړه



**د متن لنډیز:**

سید حسن خان حسن د پښتو ژبې نومیالی شاعر و. په عسکري چارو کې د حرب رئیس و. اصلي ځای یې کونړ او په لغمان او کابل کې اوسېده. د ملي احساس خاوند او په وطن مین شاعر و چې شعرونو یې انتقادي او اصلاحي بڼه درلوده. په شعر کې یې هنري اړخ هم پیاوړی و. سید حسن خان په معاصره دوره کې هغه شاعر و چې د شعر پیغام یې په ښکلې هنري جامه کې رانغښتی و.




۱ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي.

- سید حسن خان حسن د کومې دورې شاعر و ؟
- د سید حسن خان د شعر پیغام څه و ؟
- سید حسن خان څه دنده درلوده؟

۲ـ زده کوونکي دې په وار سره شعر ولولي او مفهوم دې یې په خپلو خبرو کې ووایي.

۳ـ زده کوونکي دې د سید حسن خان د شاعرۍ مهم ټکي په یو، یو پراګراف کې ولیکي او بیا دې یې په وار سره په ټولګي کې ووایي.

۴ـ زده کوونکي دې په لاندې بیتونو خبرې وکړي او هر یو دې خپل نظر څرګند کړي:

رژېدو له وېرې نه غورځېږي ولې
اندېښنه پرېږده غوټۍ توکل زده کړه
کورنۍ مرغه په شان به څومره ژوند کړې
د شاهین په دود ازاد الوتل زده کړه
که د نورو اسایش او ارام غواړې
ګهوارې غوندې د ځان کړېدل زده کړه

۵ـ لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروئ:

۱ـ انعکاس ۲ـ حرب ۳ـ درشت ۴ـ نااهلان
۵ـ اسایش ۶ـ ګهواره ۷ـ جرس ۸ـ استبداد



۹_ مبارز     ۱۰_ دریغ

۶_ په لاندې جملو کې کوم نومځري (ضمیرونه) راغلي دي، په نښه یې کړئ:

- زه بل قلم درکوم.
- ستا بکس مې هیڅ په کار نه دی.
- څوک به زما د پوښتنې ځواب ووایي؟
- نور مېلمانه هم راغلل.

ولې درس وایو؟




زده کوونکي دې د سید حسن خان حسن د شعر لاندې بیتونه په کورکې ولولي او د هغو مفهوم دې په څو کرښو کې ولیکي او بله ورځ دې یې هغه په ټولګي کې واوروي.



که د نورو اسایش او ارام غواړې
کهوارې غونډې د ځان کړېدل زده کړه
کړندی شه کاروان هی کړه منزل لنډ دی
د جرس په اواز تلل او راتلل زده کړه
راحت پرېږده زحمت واخله سید حسنه!
د وطن په درد و غم ژړېدل زده کړه





# د اپینو زیانونه



نشه د اسلام په سپېڅلي دین کې حرامه بلل شوې ده. هر ډول نشه د بدن ذهني او بدني ځواک او توان له منځه وړي. له همدې امله معتادین د ټولنې په اوږو بار کېږي او کله کله ناوړه کارونو ته هم لاس اچوي. نشه په ټولنه کې د سړي اعتبار کموي او خلک پرې بې باوره وي. د نشه یي توکو کارول معیوبیت رامنځته کوي او کله د مرګ سبب هم کېږي.

د نشه یي توکو ډولونه زیات دي چې یو ډول یې اپین دي په دې درس کې د اپینو د استعمال زیانونه تاسو ته درپېژنو.

## پوښتنې

اپین یوه تور بخنه نسواري ماده ده چې د یوه بوټي له شېرې څخه چې کوکنار نومېږي لاس ته راځي. د انسانانو معلومات د اپینو او د هغه د طبي تاثیراتو په اړه کم تر کمه څلور سوه کاله مخکې تر مېلاده رسي. په ځینو سر چینو کې داسې راځي چې په اروپا کې مجاریان لومړني کسان وو چې د کوکنارو له بوټي سره یې اشنایي پیدا کړې وه. وروسته بیا د رومیانو او یونانیانو په لیکنو او اثارو کې د خشخاشو یادونه شوې ده. د اسلامي تمدن په دوران کې هم ځینو شاعرانو په خپلو شعرونو کې د اپینو نوم یاد کړی دی او ځینو پوهانو او طبیبانو لکه بلخي ابو علي سینا او محمد زکریا رازي د بېلابېلو ناروغیو د درملنې لپاره له اپینو څخه په ډېره کمه اندازه استفاده کړې ده.



که څه هم اپین په طبابت کې په یوه ټاکلې فیصدۍ د دردونو د تسکین لپاره د ځینو دواګانو په جوړښت کې کارول کېږي، خو د نوموړو دواګانو استعمال د ډاکټر له اجازې پرته زیات خطر ناک او د بېلا بېلو ناروغیو لکه: سرطاني ناروغیو، مسمومیتونو او حتٰی د مړینې لامل ګرځېدای شي.

د اپینو استعمال په لومړي سر کې په معتاد سړي کې یو ډول کاذبه خوشحالي منځته راوړي، خو له ځنډه وروسته استعمالوونکی شخص ستړیا، زړه بدي او مسمومیت احساسوي. تریاکي کسان تل له یوه سخت او مزمن مسمومیت سره مخ وي چې دغه مسمومیت کله ناکله د مړینې لامل هم ګرځي.

د اپینو او نورو نشه يي توکو استعمال د ملیونونو انسانانو د تباهۍ سبب ګرځي او په ټولنه کې اخلاقي انحطاط او ټولنیز ناوړین رامنځته کوي، حال دا چې د مخدره توکو د کرکیلې او قاچاقو ګټې د یو شمېر بد مرغو، حریصو او ماده پرستو عناصرو جیب ته ځي چې تل د خپلو شخصي ګټو فکر کوي. د اپینو استعمال او قاچاق په یوه ټولنه کې د ډېرو لویو جرمونو لکه غلا، وژنې، لوټمارۍ، تېري او نورو سلګونو فسادونو لامل ګرځي.

## د اپینو روغتیايي او روحي زیانونه:

د اپینو استعمال بېلا بېل زیانونه لري، خو څو خطرناک ضررونه يې دا دي:

۱ـ مسمومیت
۲ـ د زړه ناروغي
۳ـ ډنګر توب او د بدن عمومي کمزوري
۴ـ د سږو سرطان
۵ـ د بدن د وزن کموالی
۶ـ د حافظې کمزوري
۷ـ د ستړیا احساس
۸ـ د جنسي میل کمزوري.



**د لوست اصلي پیغام:**

اپیین یو ډول نشه یي توکی دی چې استعمال یې د بېلا بېلو ناروغیو، لکه: سرطان، زېږي، د زړه درېدنې، د وینې د فشار، خپګان او د انزوا سبب ګرځېدای شي او ټولنه د ناورین او نابودۍ کندې ته غورځوي.



## څرګندونې

۱_ مسمومیت: زهرجن کېدل

۲_ د حافظې کمزوري: د خبرې هېرول

۳_ مزمن مسمومیت: په دوامداره توګه د بدن زهرجن کېدل.

۴_ اخلاقي انحطاط: اخلاقي کمزورتیا










۱_ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- د مخدره توکو استعمال څه ډول زيانونه منځ ته راوړي؟
- د مخدره توکو روحي او ځاني زيانونه وواياست؟

۲_ زده کوونکي دې متن په اوچت اواز ولولي او د درس مفهوم دې په لنډو ټکو کې ووايي.

۳_ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي.

۱_ معتاد ۲_ کاذب ۳_ مزمن ۴_ ناورين ۵_ انزوا

۴_ زده کوونکي دې سم ځواب په پنسل په نښه کړي:

- د اپينو استعمال:

الف: بدن قوي کوي

ب: حافظه قوي کوي

ج: د زړه ناروغي رامنځته کوي.

۵_ زده کوونکي دې ناسم ځواب په نښه کړي:

د اپينو کارول:

۱_ مسموميت رامنځته کوي.

۲_ بدن ډنگر او کمزوری کوي.

۳_ د سږو سرطان رامنځته کوي.

۴_ حافظه غبنتلې کوي.

۶_ زده کوونکي دې په وارسره د اپينو د استعمال زيانونه ځرگند او وشماري.






زده کوونکي دې په خپل چم او ګاونډ کې وګوري، که کوم معتاد وي د هغه په اړه دې څو کرښې وليکي او بله ورځ دې يې په ټولګي کې واوروي.

يا:

زده کوونکي دې د نشې په اړه يوه ريښتينې کيسه وليکي او بله ورځ دې يې په ټولګي کې واوروي.

## روږدی او دارو

د يوه روغتون رئيس د روغتون کتنه کوله، په يوه واټ کې و چې د يوه ناروغ زګېروي يې واورېدل. ورنژدې شو، تر روغبړ وروسته يې ترې وپوښتل:

نن دې دارو خوړلي دي؟

ناروغ وويل: نه ځار دې شم! دارو يې را نه کړل.

رئيس په ډېره غوسه نرس ته غږ کړ، ورته ويې ويل: ولې دې نن دارو نه دي ورکړي؟

نرس له ناروغه پوښتنه وکړه، ګولۍ دې خوړلې دي؟ ناروغ وويل: هو! بيا يې ترې وپوښتل پېچکاري يې درته کړې ده؟

ناروغ وويل هو! په دې وخت کې رئيس ناروغ ته وويل: ښه نو لکه چې داګولۍ او پېچکاري دارو نه دي؟!

نرس وويل: ښاغلی ډاکټر صاحب دا ناروغ روږدی دی او يوازې ((اپيين)) دارو ګڼي.









# عبدالرحمان بابا



په پښتو شاعرانو کې تر ټولو مقبول یا ډېر منلی شاعر څوک دی؟

د پښتو ادبیاتو د تاریخ په منځنۍ (کلاسیکه) دوره کې ډېر ښه او غوره شاعران تېر شوي دي چې یو یې عبدالرحمان بابا دی. په پښتو شاعرانو کې چې کوم عام مقبولیت او درناوی د عبدالرحمان بابا په برخه دی، تر دې وخته د بل هیڅ شاعر نه دی په برخه شوی.

په اووم ټولګي کې مو د همدغې دورې یو بل مشهور شاعر عبدالقادر خټک وپېژانده، په دې لوست کې به د عبدالرحمان بابا په اړه ولولئ.

- د عبدالرحمان بابا په اړه څه معلومات لرئ؟
- ولې عبدالرحمان بابا په ولس کې زیات مشهور دی؟

نومیالی عارف، مشهور صوفي او خوږ ژبی شاعر عبدالرحمان بابا د عبدالستار زوی دی. عبدالرحمان بابا په ۱۰۴۲ هـ . ق . کې د پېښور ښار ته نژدې په بهادر کلي کې زیږېدلی دی.

له زیات ټولنیز مقبولیت او ادبي شهرت سره سره د رحمان بابا د ژوندانه په اړه هر اړخیز معلومات نشته. که څه هم د خلکو په منځ کې د هغه د ژوند پېښو په اړه ځینې شفاهي روایات او کیسې شته، خو د مستندو او باوري منابعو د نشتوالي له امله هغه دومره باوري نه دي.

د عبدالرحمان بابا په اشعارو کې هم د هغه د ژوندانه د حالاتو په اړه ډېرې لږې څرګندونې راغلې دي چې د هغو له مخې د هغه د ژوندانه په اړه هم ډېر معلومات نشو ترلاسه کولای.

د عبدالرحمان بابا د ژوندانه زمانې ته نژدې لیکوال محمد هوتک پخپل اثر پټه خزانه کې د عبدالرحمان بابا په اړه لیکلي دي:

((د فقهې او تصوف کتابونه یې په پېښور کې له ملا محمد یوسف یوسفزي څخه ولوستل. د نورو علومو د زده کړې لپاره کوهاټ ته لاړ او ډېر علوم یې هلته ولوستل او لوی عالم شو.))

عبدالرحمان بابا ان د ځوانۍ له وخته ډېر پرهېزګار او عابد انسان و. تل به د خدای ﷻ په عبادت بوخت و.

داسې معلومېږي چې عبدالرحمان بابا د ځوانۍ له مهاله دریاضت اوعبادت تر څنګ شعر هم وایه. د بابا شعر د هغه د شخصیت پېژندلو ښه هنداره ده. په اشعارو کې یې دیني، اخلاقي، ټولنیز او نور مسایل نغښتي دي. عبدالرحمان بابا په پښتو شاعرۍ کې ځانته ځانګړې لاره درلوده چې تر هغه وروسته ډېر شاعران د هغه پر لاره تللي دي.

عبدالرحمان بابا په خپلو اشعارو کې د خپل وخت او د ځینو پخوانیو شاعرانو یادونې کړې دي. په پښتو کې یې د میرزا خان انصاري[1]، دولت لواني[2]، خوشحال خان خټک[3] او نورو نومونه یادکړي دي. همدارنګه یې د سنایي غزنوي[4]، حافظ شیرازي[5] او نورو





نومونه هم یاد کړي دي. له دې څخه داسې نتیجه اخلو چې عبدالرحمان بابا په شعر و شاعرۍ کې ښه مطالعه درلوده. علم او پراخې مطالعې د هغه په شاعرۍ اغېز کړی دی او د هغه شعر یې په ولس کې دومره مقبول کړی چې ټول یې په کورونو کې د شعر دیوان لولي او فالونه پرې ګوري.

د عبدالرحمان بابا په شاعرۍ کې د الله ﷻ او د رسول ﷺ مینه پرته ده موږ ته د پند، ننګ، غیرت، لوړهمت، قناعت، سخاوت، زیار او بشردوستۍ درس هم راکوي.

عبدالرحمان بابا یو ټولنیز مصلح دی. د ټولنې هوساینه او نېکمرغي غواړي او د دغې نېکمرغۍ رښتینې لاره انسان ته ورښیي.

د عبدالرحمان بابا شاعري ډېره پراخه او عامه ده. د هر عمر او هر مزاج څښتن چې یې شعرونه لولي، داسې انګېري چې دا شعرونه یې زما لپاره ویلي دي. د عبدالرحمان بابا شاعري د هر چا ذوقي تنده ماتوي.

عبدالرحمان بابا پخپله یو ځای د خپل شعر په اړه وایي:

چې منکر پرې اعتراض کولی نه شي
دا دې شعر دی رحمانه که اعجاز

عبدالرحمان بابا په ۱۱۲۸ هـ . ق . کې له دې نړۍ سترګې پټې کړې او د پېښور په هزارخانۍ هدیره کې خاورو ته سپارل شوی دی. قبر یې د افغانستان د پښتو ټولنې له خوا په ۱۳۳۶ هـ . ش . کې جوړ شوی دی.



په زیارت یې هر کال پسرلنۍ مشاعره کېږي. ډېر شاعران، لیکوال او نور وګړي یې زیارت ته ورروان وي.

**د عبدالرحمان بابا یو ښکلی صوفیانه غزل:**

که څوك لاس له سوده وکاري زیان نشته
په ملنګ باندې قلنګ او تاوان نشته

د وفا خریداران دې بل خوا درومي
دا متاع د زماني په دوکان نشته

جدايي له اشنایه پیدا کیږي
نا اشنا لره هیڅ غم د هجران نشته

مګر ځان و خدای ﷻ ته پاسلي په امان شي
کنه بل خوا ته د هیچا امان نشته

هغه یار به زه و کومه خوا ته غوارم
چې یې هیچرې منزل او مکان نشته

دلبران که هر څو ډیر دي په جهان کې
زما یار غوندې دلبر په جهان نشته

چې هم قد لري، هم زلفې، هم سرې شونډې
دغه هسې رنګ آفتاب په اسمان نشته

عشق عاشق لره یو هسې ګلستان دی
چې و باغ و ته یې لار د خزان نشته

عاشقان په عشق کې واړه سلطانان دي
په دا ښهر کې نیست ګار او ناتوان نشته

که مجنون غوندې په عشق کې څوك صادق شي
د لیلی په دروازه کې دربان نشته

دانایان به د رحمان په قال پوهیږي
دلته کار د هر نااهل و نادان نشته

**د متن لنډيز:**

د عبدالرحمان بابا د پلار نوم عبدالستار خان دی. هغه په ۱۰۴۲ هـ . ق. کې زېږېدلی دی. په پښتو ژبه کې تر ټولو زيات مقبول شاعر دی.

شعرونه يې ډېر ژور صوفيانه او عارفانه رنګ لري. د شعرونو ديوان يې څو ځله چاپ شوی دی. په انګرېزي او اردو ژبو هم ژباړل شوی دی.

عبدالرحمان بابا په ۱۱۲۸ هـ . ق. کې مړ او د پېښور د هزارخانی په هديره کې ښخ دی. زيارت يې په ۱۳۳۶ هـ . ش. کال کې د پښتو ټولنې له خوا جوړ شوی دی.




۱ـ ميرزا خان انصاري: ميرزا خان انصاري د روښاني غورځنګ يو شاعر و چې تر عبدالرحمان بابا پخوا تير شوی دی.

۲ـ دولت لوانی: دولت لوانی هم د روښاني غورځنګ او د ميرزا خان د وخت شاعر و.

۳ـ خوشحال خان خټک: د پښتو ژبې مشهور شاعر چې تر عبدالرحمان بابا دمخه و.

۴ـ سنايي غزنوي: د فارسي ژبې مشهور شاعر و.

۵ـ حافظ شېرازي: د فارسي ژبې مشهور شاعر و.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن ولولي او بیا دې هریو د عبدالرحمان بابا په اړه معلومات وړاندې کړي.

۲ـ زده کوونکي دې شعر په لوړ اواز ولولي او هر زده کوونکی دې یو، یو بیت معنا کړي.

۳ـ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي.

- عبدلرحمان بابا چېرې زېږېدلی او چېرې ښخ دی؟
- عبدالرحمان بابا له چا نه زده کړه کړې وه؟
- د عبدالرحمان بابا شعر ولې په ولس کې دومره مقبول دی؟

۴ـ زده کوونکي دې د عبدالرحمان بابا د شعر ځانګړتیاوې په خو کرښو کې ولیکي او په ټولګي کې دې یې په وار سره ووایي.

۵ـ زده کوونکي دې ووایي چې په لوست کې پر عبدالرحمان بابا سربېره نور کوم شاعران راغلي دي.

۶ـ ستاسې د عبدالرحمان بابا شعر ولې خوښېږي؟ خپل نظر څرګند کړئ!

۷ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي.

اعجاز　　قلنګ　　متاع　　پاسلي　　قال　　دربان



## کورنۍ دنده

که د عبدالرحمان بابا په څېر دکوم بل شاعر په اړه معلومات لرئ په کور کې یې ولیکئ او بله ورځ یې په ټولګي کې واوروئ.







# اوبه او چاپېریال



اوبه د الله تعالیٰ ډېر ستر نعمت دی. ټول ژوي، ونې او بوټي په اوبو ژوندي وي. له اوبو پرته د نړۍ پرمخ ژوند ناشونی دی. ونې او بوټي ځنګلونه او ورشوګانې جوړوي. ځنګلونه او ورشوګانې چاپېریال سمسوروي. هوا پاکوي، د ژویو استوګنځایونه او خواړه برابروي، نو د اوبو سرچینې باید وپېژنو او پر اهمیت یې پوه شو.

- اوبه د ژوندانه سره څه اړیکه لري؟
- د چاپېریال په ښېرازۍ کې د اوبو د اهمیت په اړه څه فکر کوئ؟



اوبه د الله تعالیٰ ﷻ یوستر نعمت دی. بې اوبو د نړۍ یو ژوی هم ژوندی نشي پاتې کېدای. که اوبه نه وای، نو د ځمکې پر مخ ژوندکول ناشوني وو. ټول حیوانات، نباتات او انسانان د ژوندانه لپاره اوبوته اړتیالري. دچاپېریال له بېلابېلو توکو څخه ژوي ګټه اخلي، د چاپېریال ښکلا او ښېرازي هم د اوبوپه شتون پورې تړلې ده.

ونې بوټي هم په اوبو زرغونېږي. ونې بوټي ورشوګانې او ځنګلونه جوړوي. دغه ورشوګانې او ځنګلونه د چاپېریال د سمسورتیا او ښېرازۍ لامل ګرځي. ځنګلونه د هوا پر پاکولو او د اوبو پر زېرمه کولوسربېره د ودانیو او سون لرګي برابروي. ځنګلونه د ویجاړو ونکو بادونو او سېلابونو مخه هم نیسي.

د حیواناتوډېره اندازه خواړه له ونو او بوټو څخه ترلاسه کېږي اوغلې دانې د انسانانو د خوړو یوه مهمه برخه برابروي. وابنه، بوټي، او غلې دانې هم د خپلې ودې لپاره اوبو ته اړتیا لري. دا ټولې ښېګڼې د اوبو له برکته دي. اوسنۍ پرمختیاوې د برېښنا او برېښنا د اوبو له برکته رامنځ ته شوې ده.

موږ ویلای شوچې د ځمکې پر مخ د اوسېدو ټول امکانات د اوبو له شتون سره تړلي دي، نو پر دې باید پوه شو چې اوبه له کومو سرچینوترلاسه کېږي او زموږ په ژوندکې څومره اهمیت لري.

د اوبو تر ټولو غوره سرچینې بارانونه او واورې دي. له ویلې شویو واورو او بارانونو څخه ډنډونه، خوړونه، سیندونه او سمندرونه جوړېږي. د بارانونو او ویلې شویو واورو د اوبو یوه برخه په ځمکه کې جذبېږي، دغه جذبې شوې اوبه د چینوپه ډول او یا هم د کارېزونو او څاګانو د کیندلو له لارې هم د ګټې اخیستنې وړ ګرځي.

د ډنډونو، خوړونو، سیندونو او سمندرونو اوبه کله زیاتېږي او کله کمېږي. دغه زیاتوالی او کمښت په اوربښت پورې تړلی وي. که اوبه کمې شي د چاپېریال په ښېرازۍ ناوړه اغېز کوي، د تودوخې د درجې د لوړېدو لامل ګرځي او کرکیلې ته هم زیان رسېږي. دغه ټول توکي بیا د ژویو او په ځانګړي ډول د انسانانو له ژوندانه سره کلکه او نېغه اړیکه لري، یعنې د انسانانو پر ژوند هم ناوړه اغېز کوي.




زموږ د هېواد د کرنیزو ځمکو لویه برخه په روانو اوبو خړوبېږي؛ خو یو شمېر للمي کرنیزې ځمکې د باران په اوبو هم خړوبېږي.

زموږ د هېواد په ډېرو سیمو کې د روانو اوبو سرچینې شته چې د کرکیلې، برېښنا او څښاک لپاره ترې ګټه اخیستل کېږي؛خو د یو شمېر سیمو روانې اوبه کمې دي ؛ نو خلک د جو ورونو(ډنډونو) په واسطه خپلې ځمکې خړوبوي. دا طریقه زیاتره په غرنیو سیمو کې ترسره کېږي او یا په هغو ځایونو کې عملي کېږي چې روانې اوبه نه لري او یا ډېرې لږې وي.



دغه لږې اوبه لومړی زېرمه کېږي او بیا ترې د اړتیا په وخت کې کار اخیستل کېږي. که څه هم دغه کار یو څه ستونزمن دی ، خو په ځینو سیمو کې د کروندګرو د ستونزو لیرې کولو یوازینۍ لاره ده. دغه کار د چاپېریال په سمسورتیا او ښکلا کې هم ونډه لري. د دې ترڅنګ په ځمکه کې د جذب شویو اوبود راایستلو نورې طریقې هم شته. د

افغانستان په ډېرو سیمو کې دغه تر ځمکې لاندې اوبه راباسي او په بېلابېلو برخو کې ترې کار اخلي. کاریزونه او څاګانې د دغو اوبو رااېستلو یوه غوره طریقه ده.

د اوبو د منابعو پر موندلو سربېره د اوبو پاکوالی ډېر زیات مهم او اړین دی، که دغه اړخ ته کلکه پاملرنه ونشي؛ نو انسان په ډول، ډول ناروغیو اخته کېږي. موږ باید د اوبو زېرمې بېځایه ونه لګوو او هم د اوبو په پاکو ساتلو کې مرسته وکړو او د ککړتیا مخه یې ونیسو، چې ځان او ټولنه مو له ناروغیو څخه وژغورو.



اوبه د ځمکې پر مخ هغه طبیعي او ضروري توکی دی چې له شتون پرته یې په نړۍ کې ژوند ناممکن دی. په کار ده چې له اوبو څخه پرځای او سمه ګټه واخلو او تر ممکنه حده یې د پاکوالي او سپما خیال وساتو، ځکه چې اوبه یو حیاتي توکی دی او له دې سره سره په ډېرو هېوادونو کې اقتصادي او تجارتي توکی هم دی چې ځینې هېوادونه له دغې





لارې نه هم ډېره ګټه تر لاسه کوي.

د اوبو اهمیت په پښتو ادبیاتو کې هم ډېر زیات منعکس شوی دی، د بېلګې په توګه د پښتو ادبیاتو د منځنۍ دورې د خورا مشهور او نامتو شاعر عبدالرحمٰن بابا د یوې قصیدې، څو بیتونه لولو:

هر چې کښت یې په باران او په سېلاب وي
د هغو عمر به وار په عذاب وي
هغه ملك چې پکې سیند او رودبار نه وي
دهقانان به یې همه خانه خراب وي
و اسمان ته به یې سترګې وي ختلې
د باران له انتظاره به بې خواب وي
لکه څوك چې تلوي یې په کړهي کې
د هغه ماهي په طور به کباب وي
لا به کله بارانونه پرې نزول شي
چې نخیل و زراعت به یې سېراب وي

**د متن لنډیز:**

اوبه د ژوند ماده ده. نباتات یا ونې او بوټي د خپلې ودې او نمو لپاره اوبو ته اړتیا لري، ټول ژوي د ژوندانه لپاره اوبو اوسمسور چاپېریال ته اړتیا لري. زموږ په هېواد کې اوبه د انرژۍ د تولید یوازینۍ او اسانه وسیله ده . د اشرف المخلوقات (انسان) په لاس رامنځته شوي اوسني حیرانوونکي پرمختګونه د اوبوپه انرژۍ پورې تړلي دي.

موږ باید د دې مهمې او ارزښتناکې حیاتي مادې په زېرمه کولو، پاکو ساتلو او بې ځایه نه مصرفولو کې فعاله ونډه واخلو.



## فعالیتونه

۱ـ زده کوونکي دې متن د کتاب له مخې په لوړ غږ ولولي.

۲ـ څو زده کوونکي دې په وار سره د اوبو پر منابعو خبرې وکړي.

۳ـ څو نور زده کوونکي دې د چاپېریال په اړه وغږېږي.

۴ـ یوه ډله زده کوونکي دې گران لغتونه پر تخته ولیکي، بله ډله دې د ښوونکي په مرسته هغه معنا کړي.

۵ـ زده کوونکي دې لاندې لغتونه په خپلو کتابچو کې ولیکي بیا دې معنا او په جملو کې وکاروي او په وار سره دې په ټولگي کې ولولي.

چاپیریال　　منابع　　سمسورتیا　　بنستیز　　اړیکي　　ستونزې

۶- زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي، د درس لنډ مفهوم دې په کتابچو کې ولیکي او بیا دې یې په ټولگي کې واوروي.

۷ـ هر زده کوونکی دې په خپل وار سره د دوو مېوو نومونه واخلي.



## کورنۍ دنده

ځنگلونه او ونې بوټي په چاپېریال کې څه اغېزې لري. په دې اړه په کور کې یو مخ لیکنه وکړئ او بله ورځ یې په ټولگي کې واوروئ.



شپږویشتم لوست

# احمد شاه بابا ــ ملي مشر او شاعر



هر ملک او ملت ملي او سیاسي اتلان لري زموږ د ګران هېواد افغانستان له نومیالیو مشرانو او اتلانو څخه یو هم احمد شاه بابا دی.

زموږ هېواد څه نا څه دوه پېړۍ د پرد یو یرغلګرو د لاس وهنو له کبله پاشلی او د کورنیو جګړو ښکار شوی و چې د احمدشاه بابا په هلو ځلو یې بېرته خپل پخوانی برم تر لاسه کړ. په دې درس کې تاسې ته د احمدشاه بابا په اړه معلومات درکوو.

- د احمد شاه بابا شخصیت ولې د قدر وړ دی؟
- که د احمد شاه بابا ملي تدبیر نه وای، نو د افغانستان برخلیک به څه ډول و؟

احمد شاه بابا د زمانخان زوی د دولت خان لمسی په ۱۱۳۵ هـ . ق . کال په هرات کې زېږېدلی دی. پلار يې په هرات کې د افغاني قبيلو مشر و چې د احمدخان له زېږېدو څو مياشتې وروسته مړ شو.

د احمد شاه بابا پالنه د هغه مور (زرغونې انا) او وروريې ذوالفقار خان وکړه او په کوچنيوالي کې يې مروجه علوم ور زده کړل.

کله چې د کورنيو ګډوډيو له مخې کډه کولو ته اړ شول، نو لومړی فراه او بيا کندهار ته کډه شول. هغه وخت چې نادر افشار د هرات نيولو ته ملا وتړله، نو په ښکاره يې له افغانانو سره نرم چلند غوره کړ. ډېر افغانان يې په خپل پوځ کې شامل کړل.

احمد شاه بابا هم په ۱۱۴۵ هـ . ق . کال کې د خپلې ځيرکۍ او زړورتيا له مخې د دراني لښکرو د افسر په توګه وټاکل شو. دی په زياتو سفرونو کې له نادر افشار سره ملګری و.

نادر افشار په ۱۱۶۰ هـ . ق . کال کې و وژل شو، احمد شاه بابا د درباريانو له شورش نه د نادر افشار کورنۍ وساتله. د نادر افشار مېرمنې د دغه خدمت په بدل کې احمدشاه بابا ته د کوه نور الماس وروباښه. د نادر افشار تر مرګ وروسته احمد شاه بابا او نور افغاني عسکر او افسران کندهار ته راغلل. څو ورځې وروسته د افغاني قبيلو مشران د واکمنۍ او مشر د ټاکنې د ډکو لپاره د کندهار د شېر سرخ بابا په زيارت کې سره راټول شول او يوه جرګه يې جوړه کړه.

د دې جرګې غونډې څو ورځې روانې وې. د غونډې په نهمه ورځ د صابر شاه په نامه يو ملنګ راغی او جرګې ته يې وړانديز وکړ چې د مشرتابه د ټاکلو واک ورکړي، ټولو يې خبره ومنله. هغه په احمدشاه بابا باندې چې مشری ته کانديد هم نه و، لاس کېښود او د غنمو وږي يې په پګړۍ کې ور وټومبه.

په دې توګه احمد شاه بابا په پنځه ويشت کلنۍ کې زموږ د هېواد د واکمن په توګه وټاکل شو او د شېر سرخ جرګه په برياليتوب پای ته ورسېده.






احمد شاه بابا په داسې وخت کې واکمن شو چې زموږ هېواد، د بهرنیو یرغلګرو او کورنیو قومي او قبیلوي اختلافاتو له کبله په کنډوالو بدل شوی و. د ملي وحدت هغه ځلی چې بنسټ یې څو کاله د مخه د میرویس خان نیکه په لاس ایښودل شوی و، نړېدلی و. په دې وخت کې هغه ته د یو خپلواک افغاني دولت د جوړولو او د ملي وحدت رامنځته کولو درنه دنده مخې ته پرته وه چې په ډېر تدبر یې د دغې درنې دندې ترسره کولو ته ملا وتړله. د دغه ستر ارمان د پوره کېدو لپاره تر هرڅه لومړی د هېواد د ملکي او پوځي چارو سمون ضروري و.

احمدشاه بابا سربېره پر دې چې په پوځي او سیاسي چارو کې د زیاتې پوهې، زړورتیا، پیاوړي عزم او هوډ خاوند و، د افغان ولس په روحیاتو او عنعناتو ښه خبر و. هغه په دې پوهېده چې د خپل ولس له بشپړ ملا تړ نه پرته د موجودو ستونزو هواری درووند او مشکل کار دی، نو له ټولو قومونو څخه یې شورا جوړه کړه چې ټولې پرېکړې به د همدغې شورا له خوا کېدې. ډېرې پوځي او ملکي اداري د شورا د پرېکړو په نتیجه کې

جوړې شوې او د کار ور کسان یې مقرر کړل.

له پوځي او اداري چارو وروسته یې د ملي وحدت د رامنځ ته کولو او یو خپلواک غښتلي حکومت مسئله رامخې ته کړه. شورا دا ومنله چې د ټول افغانستان د قومونو مشران دې راوغوښتل شي او یوه لویه جرگه دې جوړه شي چې همداسې وشول او لویه جرگه جوړه شوه.

لویې جرگې د احمد شاه بابا د یو موټي، خپلواک او غښتلي افغانستان د جوړولو تجویز ومانه او هغه ته یې د هغو افغاني سیمو د بیا نیولو اجازه ورکړه چې په ختیځ کې د هند مغلي حکومت او په لوېدیځ کې د ایران صفوي حکومت نیولې وې. احمدشاه بابا هم د جرگې پر مشوره عمل وکړ او لومړی یې ختیځې سیمې له مغلي او بیا لویدیځې سیمې له صفوي حکومتونو څخه بېرته ونیولې او یو غښتلی مرکزي حکومت یې جوړ کړ. سیاسي او جغرافیایي پولې یې ورته وټاکلې او د نوي افغانستان ملي، پوځي او سیاسي بنسټ یې کېښېښود.

احمد شاه بابا د خپلې واکمنۍ په وخت کې دې ته هم اړ شو چې د خپل هېواد له سرحداتو څخه ووځي او د هېواد ختیځ خوا تر ډهلي، شمال خوا تر بخارا او لویدیځ لوری تر مشهده پورې ونیسي. د هغه دغه فتوحات د امپراتورۍ جوړول نه وو، بلکې دغو ملکونو ته د عبرت داسې درس ورکول وو چې بیا هیڅکله افغانستان ته په بده سترگه ونه گوري.

هغه له ډېرو فتوحاتو سره، سره د خپل هېواد سره دومره مینه لرله چې د ډهلي تخت یې هم د خپل هېواد له غرو سره نه برابرا وه. د احمدشاه بابا د پاچاهۍ ۲۶ کلونه د یادونې وړ لوړې ژورې لري. احمدشاه بابا سره له دې چې په ژوند کې یې سیاسي بوختیاوې زیاتې وې، خو د پښتو ژبې له شعر او ادب سره یې هم د زړه مینه لرله. دغه شعر یې له گران هېواد سره د تودې مینې خورا په زړه پورې بېلگه ده :



سنا د عشق له وینو ډك شول ځیګرونه
سنا په لاره کې بایلي زلمي سرونه
تاته راشمه زړه کې زما فارغ شي
بې له تا مې اندېښنې د زړه مارونه
که هر څو مې د دنیا ملکونه ډېر شي
زما به هېر نشي دا سنا ښکلي باغونه
د رقیب د ژوند متاع به تار په تار کړم
چې په توره پیښانه کا کوز ارونه
د دهلي تخت هېرومه چې را یاد کړم
زما د ښکلي پښتونخوا د غرو سرونه
که تمامه دنیا یو خوا، ته یل خوا یې
زما خوښ دي دغه سنا تش ډګرونه
احمد شاه به دغه سنا قدر هېر نه کا
که ونیسي د تمام جهان ملکونه

له بده مرغه زموږ هېواد د بېلا بېلو ښکېلاکګرو د تاړاکونو پر مهال تر هر څه زیات فرهنګي زیانونه لیدلي دي. زموږ د هېواد د علمي او فرهنګي پرمختګ بهیر د نادر افشار په تاړاکونو کې هم ډېر ټکنی شو. کندهار د څه وخت لپاره خپل مرکزي حیثیت له لاسه ورکړ. کله چې د احمد شاه بابا په لاس په ۱۱۶۰ هـ . ق . کال کې د یو ځواکمن او خپلواک افغاني دولت بنسټ کېښېښودل شو، کندهار یو ځل بیا د پخوا په څېر د علم او فرهنګ مرکز شو.

احمد شاه بابا پخپله یو عالم، ادیب، فاضل او مدبر پاچا و. هغه ډېر عالمان، ادیبان او د نورو علومو او فنونو کارپوهان خپل دربار ته راټول کړل. د ډېرو علمي او ادبي کورنیو پالنه یې وکړه. بیا دغو کورنیو هرې یوې په خپل وار سره د هېواد د ولسونو په عملي،



فکري او فرهنګي روزنه او پالنه کې د يادولو وړ خدمتونه وکړل.

لکه څرنګه چې احمد شاه بابا پخپله شاعر و، همداسې يې د کورنۍ او دربار ځينې غړي هم د پښتو ژبې شاعران وو. د ده د پاچاهۍ په زمانه کې نورګڼ شمېر ليکوال او شاعران هم رامنځته شوي دي.

د کورنۍ له غړو څخه يې د يادونې وړ شاعر د ده مشر زوی تېمور شاه و. تېمورشاه په پښتو او دري دواړو ژبو شعرونه ويل، په دري کې د شعرونو ديوان لري. په دغه ديوان کې يې څو پښتو غزلې هم شته.

د احمد شاه بابا د دربار له ارکانو څخه وکيل الدوله، عبدالله خان هم د پښتو ژبې تکړه شاعر و.

د پښتو په ادبي څېړنو کې دا خبره هم راغلې ده چې د لوی احمدشاه بابا تر پاچا کېدو وروسته پير محمد کاکړ د خپل علمي شهرت او فضليت له مخې کندهار ته راوبلل شو او د بابا او د ده د زامنو او حتٰی چې د ده تر لمسيو پورې په دربار کې مقرب سړی و. پيرمحمدکاکړ د احمد شاه بابا د زوی شهزاده سليمان خاص استاد و. هغه د پښتو ژبې له ښو شاعرانو او د پښتو له ډېرو لويو عالمانو څخه و، چې د پښتو ژبې ګرامر (معرفت الافغاني) يې وليکه.

ـ حافظ ګل محمد مرغزي د احمد شاهي شاهنامې ليکوال د موسٰی زوی د پښتونخوا د صوابۍ مرغز اوسېدونکی او د دربار ليکوال و.

ـ د احمد شاه بابا د رزمي کارنامو شاعر محمد رفيق خان علي زی دی چې له کندهاره د احمد شاه بابا له لښکرو سره د هند پر لور تللی و، بېرته ستون نه شو او دصوابۍ په کونډه نومي کلي کې پاتې شو. د شعرونو ديوان يې لا تر اوسه نه دی چاپ شوی.

ـ د پښتو ژبې يو بل عروضي شاعر او د عروضو عالم مياشرف الکوزی هم د پانې پت په جګړه کې له احمدشاه بابا سره ملګری و. دې په اصل کې د ننګرهار دګردي اوسېدونکی و. ډېرې غزلې او قصيدې يې په ديوان کې شته. د پښتو ژبې بل شاعر چې د احمد شاه بابا په وخت کې اوسېده برهان خان د نادر خان زوی د صوبه سرحد د هزارې





د سیمې اوسېدونکی و.

په دې دوره کې د عالمانو، ادیبانو او فرهنګیانو په ډله کې ځینې نور کسان هم د ځانګړې یادونې وړ دي، لکه: میافقیرالله جلال ابادي، ملا محمد غوث، مولوي محمد ابراهیم، ملا فیض الله دولت شاهي او نور.

د احمدشاه بابا په پاچاهۍ کې په هندکې هم شاعران، ادیبان او لیکوالان رامنځته شول چې زیات یې د احمدشاه بابا له خوا پالل شوي او نازول شوي دي.

تېمور شاه هم د خپل پلار (احمد شاه بابا) د وخت علمي او فرهنګي کورنۍ وپاللې. د ده دربار هم د لیکوالو او شاعرانو د راټولېدو ځای و.

احمد شاه بابا خپل نیمايي ژوند د خپل ملت او هېواد د ملي او سیاسي بنسټونو د پیاوړتیا په لارکې ولګاوه. نوموړی په ۱۱۸۶ هـ . ق . کال کې د ورپېښې ناروغۍ له امله تر ۲۶ کالو پاچاهۍ وروسته د ۵۱ کالو په عمر په کندهار کې مړ شو او یو پیاوړی یو موټی او خپلواک افغانستان یې موږ ته پرېښود.

**د متن لنډیز:**

د یو ملک او ملت د نوم د ژوندي پاتې کېدو لپاره باتدبیره مشران او یو موټی او سربښندونکی ولس په کار دی. احمدشاه بابا هغه ځوک و چې د خپلې ځېرکۍ پر مټ یې د افغانستان له منځه تلونکې ځېره بېرته راژوندۍ کړه او زموږ د هېواد نوم یې د نړۍ په سیاسي جغرافیه کې د تل لپاره ثبت کړ.

له همدې امله د نوموړي پېژندل او د هغه د شخصیت احترام پرځای کول د ټولو افغانانو ملي فریضه ده.

احمد شاه بابا د نوي او معاصر افغانستان او یو ملي خپلواک افغان دولت مؤسس او بنسټ ایښودونکی دی.



## فعالیتونه

۱ـ زده‌کوونکي دې په وارسره د متن یو یو پراګراف ولولي، نور زده‌کوونکي دې په وار سره د متن مفهوم په خپلو خبرو کې ووایي.

۲ـ زده‌کوونکي دې د احمدشاه بابا د وخت مهم کارونه په خپلو کتابچو کې ولیکي او بیا دې یې په وار سره په ټولګي کې ووایي.

۳ـ زده‌کوونکي دې له متن څخه ځانګړي او استفهامي نومځري پیدا او په ټولګي کې دې یې ووایي.

۴ـ څو زده‌کوونکي دې د احمدشاه بابا شعر په خوږه او روانه ژبه ووایي او نور زده‌کوونکي دې هغه معنا کړي.

۵ـ زده‌کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي.

ـ متاع　　ـ فارغ　　ـ اندیښنې　　ـ رقیب

۶ـ د احمد شاه بابا په وخت کې کوم شاعران پېژنئ نومونه یې واخلئ!

۷ـ په لاندینیو کورنیو کې د احمد شاه بابا د دورې د مشهورو ادبي او فرهنګي کورنیو نومونه په پنسل نښه کړئ:

ـ د بارکزیو کورنۍ　　ـ د برمکیانو کورنۍ

ـ د پیرروښان کورنۍ　　ـ د ملا اسماعیل کورنۍ

ـ د سلجوقیانو کورنۍ　　ـ د محمد هوتک کورنۍ



## کورنۍ دنده

په کور کې له متن څخه د احمدشاه بابا د وخت د ادبي دورې په باره کې څو کرښې ولیکئ او بله ورځ یې په ټولګي کې واوروئ!







# لرغوني آثار



تاسو هرومرو داسې سامانونه، لوښي، کتابونه، وسیلې، ودانۍ او نور څیزونه لیدلي دي چې په سوونو یا ان زرګونو کلونه پخوا جوړ شوي او تر اوسه پورې پاتې دي.

دغه ډول څیزونه چې دومره اوږد وخت پرې تېر شوی وي، لرغوني څیزونه یا اثار يې بولي. دغه اثار دا ارزښت لري چې موږ ته د تېرو زمانو د انسانانو د ژوندانه د ډول، خوراک، څښاک، لباسونو، عقیدو او نورو په اړه معلومات راکوي. په دې لوست کې به د لرغونو اثارو د اهمیت او ارزښت په اړه معلومات ولولئ.

- که تاسې د کومې لرغونې سیمې په اړه معلومات لرئ خبرې پرې وکړئ ؟
- که موزیم او ارشیف ته تللي یاست، څه مو لیدلي دي؟



بې شمېره کلونه کېږي چې انسان د ځمکې پر مخ ژوند کوي. انسان د ځمکې پر مخ د الله ﷻ خلیفه دی. ټول کاینات د انسان په خدمت کې دي. انسان هم په بېلا بېلو زمانو کې د خپل عقل او پوهې په برکت ډول ډول تمدنونه رامنځته کړي دي. انسان لګیا دی په خپل واک کې د کایناتو د راوستو یا له کایناتو څخه د بشپړې ګټې اخیستنې هڅه کوي. ډېر داسې څه یې کشف کړل چې انساني عقل ورته حیرانېږي او د نور پرمختګ هڅې یې روانې دي. د دې لپاره چې انسان د تېرو انسانانو یا د خپلو پلرونو، نیکونو او یا تېر نسل له ژوندانه، عقیدې، خوراک، لباس او نورو په حال خبر شي باید له پخوانیو انسانانو څخه راپاتې توکي وڅېړي او د هغوی د څېړنې او شننې له مخې د هغو په ژوند قضاوت وکړای شي.

ښایي دغه توکي خاورین لوښي، ډبرین څیزونه او یا فلزي وسایل اونور څیزونه لکه سیکې، وسلې او کرنیز سامانونه، هډوکي، ګاڼې، کتیبې، ډبرلیکونه، پخوانۍ ودانۍ، مجسمې او نور وي. دغه توکي چې موږ ته په چوپه خوله د پخوانیو انسانانو د ژوندانه د بېلا بېلو اړخونو کیسې کوي لرغوني اثار یې بولي.

د دغو اثارو د څېړلو، څرنګوالي معلوملو او د تاریخ او اهمیت ثابتولو علم ته لرغونپوهنه وایي. دا علم د هر هېواد لپاره، خو په تېره د افغانستان لپاره ډېر اهمیت لري. په افغانستان کې دغه علم د ۱۹ مېلادي پېړۍ په دویمه لسیزه کې لومړی ځل مروج شوی دی. له دغه وخته را په دې خوا یو شمېر بهرني لرغونپوهان افغانستان ته په رسمي او نارسمي توګه راغلي دي. دغو لرغونپوهانو د خپلو څېړنو او کیندنو په پایله کې ډېر شمېر لرغوني توکي ترلاسه کړي دي چې د ختیځ او لویدیځ موزیمونه پرې ډک شوي دي.

په بهرنیو لرغون پېژندونکو کې مېرمن لوییس دوپري، کزال، الچین، کارلتول مسن، جان، مارشال، کرشمن، مشینک، پوګاچینګوا، سریندي او نور یادولای شو. په کورنیو لرغون پېژندونکو کې د پوهاند عبدالحی حبیبي، احمد علي کهزاد، مستمندي، میرغلام محمد غبار، پوهاند میر حسین شاه، پوهاند الف شاه ځدراڼ او ځینې نورو نومونه د ځانګړې یادونې وړ دي.





په افغانستان کې د لرغون پوهانو دکار او زيار په نتيجه کې څرګنده شوه چې دا هېواد ډېر لرغونی هېواد دی، له زرګونو کالونو راهيسې پکې انسانان اوسېدل او په خپله سيمه کې د يو شمېر زړو تمدنونو، عقايدو، ټولنيزو سيستمونو، هنري مکتبونو او ځواکمنو امپراتوريو د رامنځته کېدو او پراختيا مرکز ګڼل کېده.

د ځينو هېوادونو لرغوني توکي زياتره د ځمکې پر سر وي، خو په افغانستان کې لرغوني توکي ډېر لږ د ځمکې په سر دي او زياتره يې تر ځمکې لاندې دي. لامل يې دا دی چې افغانستان د تاريخ په اوږدو کې په پرلپسې ډول د يرغلګرو تر تاړاکونو لاندې راغلی دی او څو څو ځله يې ودان کلي او ښارونه وران، ويجاړ او له خاورو سره خاورې شوي دي. که د افغانستان هره غونډۍ، دښته او دره په ځير سره وکتل شي، نو هره يوه يې د خپلو نښو نښانو له مخې لرغون پوهان ځان ته رابولي چې ورشي ويې پلټي، ويې سپړي او د افغان ولس د تېر تاريخ يو ورک او پټ پرتمين څپرکی بشري ټولنې ته وړاندې کړي.

د نړۍ ټول هېوادونه او په ځانګړي ډول پرمختللي هېوادونه اوس ډېره هڅه کوي چې دغه ډول توکي د مسلکي کيندنو، سپړنو، پلټنو او نورو څېړنو له لارې ومومي او خوندي يې کړي. دغه ډول توکي يا لرغوني اثار په موزيمونو او ارشيفونو کې په فني ډول په ډېر احتياط سره ساتل کېږي. د لرغوني تاريخ د څرګندولو لپاره بايد له همدغو لرغونو توکو څخه مرسته وغواړو.

که موږ د خپلو پخوانيو مشرانو د ژوند له نېکمرغيو او بدمرغيو خبر شو، کولای شو چې د خپل ژوندانه د نېکمرغۍ لپاره ترې د لارې روښانولو د پېلوځي په توګه کار واخلو.

لرغوني توکي د ټول ملت شريک مال دی. د يوې سيمې، يوې قبيلې او يوه قوم مال نه دی. څرنګه چې دغه لرغوني توکي يا اثار شريک مال دی، نو ساتل او ژغورل يې هم د ټول ملت دنده ده. په ځانګړي ډول د لوستو خلکو دنده ده چې د دغو اثارو په ارزښت او اهميت خلک وپوهوي او پخپله يې هم د ساتنې او ژغورنې هڅه وکړي.





د افغانستان ډېرې سيمې لرغونې سيمې دي. پر دغو سيمو پر خپل خپل وخت يوتمدن تېر شوی دی. د هغه تمدن ډېر توکي په همدغو سيمو کې تر خاورو او تيږو لاندې دي، يا ځينې لرغوني کلاوې او ودانۍ له همدغو تمدنونو څخه راپاتې دي لکه د بلخ د پخواني ښار کنډوالې او بهرنۍ دېوال، د بست کلا، دای خانم مانۍ، د هډې ودانۍ او نور.

دا او دې ته ورته نورې سيمې لرغونې سيمې دي. زموږ د تاريخ ډېر توکي همدلته پراته دي او همدغه ودانۍ او کلاوې پخپله لرغوني اثار دي. د دغسې سيمو او ځايونو ساتنه او ژغورنه زموږ د ټولو ملي دنده ده.

د لرغونو اثارو او سيمو د ساتنې او ژغورنې ارزښت او اهميت په دې کې دی چې موږ د خپل تاريخ يوه برخه خوندي کوو. د سيلانيانو او مينه والو د ورتګ له لارې دولت ته ډېره پانګه په لاس ورځي. سيمه والو ته کاروبار پيداکېږي، لکه: هوټل جوړوي، دکان جوړوي. د هغو ځايونو په اړه معلوماتي کتابګوټي او د انځورونو البومونه چمتو کوي او پلوري يې. لرغونې سيمې، موزيمونه او ارشيفونه د ساعت تېرۍ او د معلوماتو د زياتولو لپاره هم خورا مهم ځايونه دي.













لرغوني اثار (سيکې، ډبر ليک، مجسمه)

**د متن لنډيز:**

لرغوني ځيزونه او ځايونه زموږ ملي شتمني ده. په ټول هېواد او هېوادوالو پورې اړه لري. زموږ د هېواد او هېوادوالو د لرغوني پرتمين تاريخ يو وياړمن ځېرکی همدا لرغوني توکي دي. همدغه لرغوني توکي زموږ د تاريخ لرغونتيا او سابقه ثابتوي او موږ د خپلو پخوانيو خلکو له عقيدو، لباس، دکار له وسايلو، فرهنګ او تمدن څخه خبروي.

د لرغونو اثارو او سيمو ساتنه هم د هر هېوادوال دنده ده. موږ بايد په کلکه د دغو اثارو او ځايونو ساتنه وکړو. چا ته اجازه ور نه کړو چې دغه اثار ويلتي او غلا يې کړي. يا دغه سيمې په خپل سر وکيندي او لرغونو اثارو ته زيان ورسوي. که موږ داسې څوک ووينو، چې دغو اثارو او سيمو ته زيان رسوي، بايد پخپله يې هم مخنيوی وکړو او مسؤولو مقاماتو ته هم ژر تر ژره خبر ورکړو.




۱_ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي.

- لرغوني اثار څه ته وايي؟
- د لرغونو اثارو اهميت په څه کې دی؟
- زموږ په هېواد کې لرغوني اثار شته که وي مثالونه يې ووایاست.

۲_ زده کوونکي دې متن په چوپه خوله ولولي او بيا دې په دوو ډلو ووېشل شي او يوه ډله دې له بلې نه د لرغونو اثارو په اړه لاندې پوښتنې وکړي.

- څه ډول شي ته لرغونی اثر وايي؟
- په لرغونو اثارو کې کوم شيان راځي؟
- زموږ په هېواد کې د لرغونو اثارو کوم کوم ځايونه پېژنئ؟
- لرغوني اثار په چا پورې اړه لري؟
- لرغوني اثار يو هېواد ته څه ګټه لري؟

۳_ زده کوونکي دې په متن کې عام او خاص نومونه پيدا کړي او بيا دې يې په ټولګي کې ولولي.

۴_ زده کوونکي دې لاندې لغتونه معنا او په جملو کې وکاروي. بيا دې په ټولګي کې په وار سره ولولي.

لرغونی، قضاوت، کتيبې، ډبرليکونه، پيلوځی

۵_ ځوتنه زده کوونکي دې تختې ته ورشي، دلرغونو اثارو نومونه او ځايونه دې په تخته وليکي.




که تاسې کوم لرغوني اثار ليدلي وي او يا موزيم ته تللي ياست د خپلو سترګو ليدلی حال وليکئ.





اته ویشتم لوست

# د هنري نثر ډولونه



نثر اونظم دواړه د مفکورو اومفاهیمو د لېږدولو وسیلې دي. نثر د نظم په پرتله ډېر کارول کېږي. لامل یې دا دی چې نثر اسان دی، هر لیکونکی یې لیکلای شي اوهر ډول موضوع پکې بیانولای شي. د دې په مقابل کې نظم ستونزمن دی، خو یادول یې اسان دي؛ ځکه وزن او قافیه پکې شرط دی.

نثر ډېر ډولونه لري چې یو یې هنري نثر دی چې په دې لوست کې تاسې ته د هنري نثر په اړه معلومات درکو و.

- که ورځنۍ خبرې په لیکنۍ بڼه وي په څه نامه یادېږي؟
- تاسې د نثر په اړه پوهېږئ چې نثر څه ته وایي؟ او څو ډولونه لري؟

نثر په لغت کې شیندلو او خورولو ته وايي. په اصطلاح کې هغه وینا یا لیکنه چې د وزن او قافیې له بند څخه خالي وي نثر بلل کېږي. څرنگه چې نثر اسان دی، نو د هر ډول افکارو، لکه: بشري، دیني، فلسفي، ښوونیزو، روزنیزو، ټولنیزو او نورو مسایلو د څرگندولو مناسبه وسیله ده. د بڼې او شکل له مخې معاصر نثرونه په دوو سترو برخو وېشل کېږي:

۱ـ ساده نثرونه
۲ـ هنري یا ادبي نثرونه

په ساده نثرونو کې ټولې علمي، ادبي سیاسي او ژورنالستیکي لیکنې، څېړنیز تحلیلي او تشریحي اثار او لیکنې راځي چې په ساده او روانه ژبه د فکر او نظر د څرگندولو او نورو ته د پوهې او معلوماتو ورلېږدونې ډېره ښه او اغېزناکه طریقه ده، خو هنري او ادبي نثرونه بیا خپلې ځانگړنې لري چې د هغو له مخې یې له عادي او ساده نثر څخه توپیر کېږي.

اساسي او بنسټیزه ځانگړنه چې ادبي او ساده نثر سره بېلوي هغه ((هنریت)) یا ((ادبي هنري ارزښت)) دی. د ادبي نثر د لیکوال احساس، ذوق او تمایلات د مطلب او واقعیت د بیانولو لپاره اساسي رول لري. لیکوال چې څه لیدلي، اورېدلي او احساس کړي وي یا یې په ذهن او خیال کې تېرېږي بیانوي یې، خو د علمي او څېړنیزو لیکنو په څېر دلیل راوړلو ته هیڅ اړتیا نه لري.

په هنري ادبي لیکنو یا نثر کې لیکوال د بېلا بېلو منظر کشیو، انساني ټیپکو خصوصیاتو، روحیاتو، عاداتو، حالاتو او په الفاظو کې د انځورولو او وړاندې کولو لپاره له خپل تخیلي ځواک څخه کار اخلي. لیکوال د تخیلي ځواک په مرسته او د لیکوالۍ د هنر د مهارتونو په وسیله د منظر کشۍ او صحنه سازۍ چاره سرته رسوي، حالات یا واقعیتونه او پېښې په الفاظو کې داسې انځوروي چې لوستونکي او یا اورېدونکي فکر کوي چې هر څه په خپلو سترگوویني او ځان ورته په صحنه کې شامل ښکاري.





په دغه ډول لیکنو کې دا د لیکوال په استعداد او فني مهارت پورې اړه لري چې انساني رواني حالات، د خلکو هیلې او غوښتنې، جذبات، عواطف او احساسات څنګه په الفاظو کې انځور او راونغاړي او مقابل لوري (لوستونکي یا اورېدونکي) ته یې ورولېږدوي او د هغه په عواطفو کې خوځښت راولي. د هنري او ادبي نثرونو د بڼې له مخې دا لاندې ډولونه موږ ته معلوم دي:

لنډه کیسه، ناول، ډرامه، رومان، طنز، تکل، ادبي ټوټه، سفر نامه، ادبي راپور تاژ، ادبي لیکونه، ادبي انځور، فلمي سناریو او نور، دلته یې ځینې په ډېر لنډ ډول درپېژنو:

۱ـ لنډه کیسه: د نثري کیسو یو ډول دی چې لنډه او له داسې عناصرو څخه جوړه وي چې یو له بل سره تړلې وي او یو د بل تر اغېز لاندې وي، موضوع د خپلو حدودو په چوکاټ کې رانغاړي، بې ضرورته خبرې پکې نه ځاییږي، د تاثر او اغیز یووالی پکې یوازینی شرط دی. په جوړښت کې یې پلاټ (طرحه)، کرکتر، تجسس او تلوسه، مکالمې او منظر کشی، تخیل، د کیسې پایله او نتیجه شامل دي.

۲ـ ناول: لغوي معنا یې نوی، تازه او عجیبه څیز دی او په ادبي اصطلاح هغې ادبي نثري کیسې یا داستان ته وایي چې له لنډې کیسې څخه لوی او له رومان څخه لنډوي. او په لیکني چوکاټ کې: طرحه، اصلي او فرعي کرکترونه، منظر کشی، مکالمې او د کیسې پیل، منځ او پای لري. له لنډې کیسې سره دا توپیر لري چې هم پکې پېښې په تفصیل سره بیانېږي او هم یې کرکترونه زیات وي.

۳ـ ډرامه: د یوناني کلمې ((ډراو)) نه مشتق شوې چې د عمل او کولو معنا لري، له همدې امله د ډرامې د پېژندنې په لړ کې دغه کلمه په کولو او ښودلو تعبیر شوې. په ادبي اصطلاح هغه اثر دی چې د خبرو اترو په فورم لیکل شوې وي، یا په بله وینا: ډرامه د یوې ژوندۍ کیسې نوم دی چې ټول احساسات او جذبات پکې د حرکت او خوځېدو په



واسطه څرګندېږي او هره پېښه عملاً د سترګو په وړاندې ښکاري.

ادبپوهان ډرامايي وحدتونه (وحدت زمان ــ وحدت مکان ــ وحدت عمل) د ډرامې د فن بنسټيز توکي بولي.

۴ــ رومان: فرانسوي کلمه ده، په ځينو فرهنګونو کې يې معنا خيالي داستانونه او په ځينو کې د مينې او محبت کيسې راغلي او په ادبي اصطلاح هغې کيسې ته ويل کېږي چې له ناول څخه اوږده وي، د ژوند ډېرې او بېلا بېلې خواوې پکې منعکس شوې وي او د بېلا بېلو پېښو انځور په ادبي قالب کې ځای کوي.

۵ــ ادبي ټوټه: د هنري ادبياتو يو ځانګړی ډول دی چې ادبپوهانو د ((منثور شعر)) په نامه هم يادکړی دی او دا ځکه چې اصلاً نثر دی، خو شعري کيفيت لري. په دې ډول ليکنو کې د لوړې انشاء خيال ساتل کېږي، معمولاً حکايوي بڼه لري، د يو حقيقت او واقعيت په اړه په زړه پورې تشريح او توضيح کوي، خو دا توضيح او تشريح په داسې رنګينو الفاظو کې نغښتې وي چې په بشري احساس او عواطفو ژور اغيز کوي.

۶ــ طنز: عربي کلمه ده چې فرهنګونو د طنز لغوي معنا ناز او کرشمه، پېغور او مسخره کول راوړي او په ادبي اصطلاح د هنري ادبياتو يو ژانر دی چې په ليکنه کې يې د ليکوال اصلي مقصدګوتنيونه (انتقاد) وي، خو دا انتقاد يې د شوخۍ په بڼه او يا په بله وينا دريشخند او تمسخر په جامه کې نغښتې وي. د وينالحن او انداز يې په زړه پورې او د ټوکو ټکالو په شکل وي او زياتره وخت پکې مسايل سرچپه (معکوس) مطرح کېږي.

طنز په واقعيت کې هغه ترخه خندا ده چې د ټولنې د خلکو په ناوړه اعمالو، عاداتو، اخلاقو او افکارو باندې کېږي.




۷_ ادبي ليکونه: هغه ليکونه دي چې په ځانګړې هنري او ادبي بڼه ليکل کېږي. په دې ليکونو کې يو لړ مهم انتقادي، سياسي، فلسفي او ادبي مسايل ليکل کېږي او د اديبانو ترمنځ تبادله کېږي. د ليکنې ژبه يې هنري او د تخيل رنګ پرې غالب وي. له استعارو، کنايو، تشبيهاتو او نورو ادبي صنعتونو څخه پکې کار اخيستل شوی وي، ژبه يې خوږه او د ليکنې طرز يې دومره په زړه پورې وي چې لوستونکی يې په لوستنه نه مړېږي.

۸_ ادبي راپوتاژ: د هنري ادبياتو يو ځانګړی ژانر دی، له عادي راپورتاژ سره يې چې يو ژورنالستيکي ژانر دی، اصلي توپير دا دی چې په ادبي راپور تاژ کې د پېښې تعبير، تفسير او تحليل په ادبي او هنري ژبه شوی وي. د دې ډول راپور تاژ ليکونکی پېښو ته په دقيق نظر ګوري او له هغه څخه چې کوم برداشت کوي، د تخيل په ملتيا يې په خوږه هنري ژبه نورو ته وړاندې کوي.

د متن لنډيز:

هغه بنسټيزه ځانګړنه چې هنري نثر له ساده نثر څخه بېلوي هنريت يا ادبي ارزښت دی. په هنري نثر کې ليکوال ټول مفاهيم د الفاظو په قالب کې په تخيلي ځواک سره ځايوي. دغه تخيلي ځواک په بشري احساس او عواطفو ژور اغېز کوي او راپاروي يې. هنري نثرونه د بنې له مخې دا دي:

لنډه کيسه، ناول، ډرامه، رومان، طنز، ادبي ټوټه، ادبي ليکونه او ادبي راپور تاژ.




۱_ زده کوونکي دې لاندې پوښتنې ځواب کړي:

- د ساده نثر او هنري نثر توپير په څه کې دی؟
- یوه لنډه کیسه له کومو توکو څخه جوړه ده؟
- ناول له لنډې کیسې سره څه توپیر لري؟

۲_ زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي او هره ډله دې لاندې پوښتنو ته ځواب ووایي:

- کومه لنډه کیسه مو لوستلې؟ لنډیز یې ووایاست.
- طنز څه ته وایي که لوستی مو وي، موضوع او شکل یې په ګوته کړئ.
- د ادبي راپور تاژ په اړه معلومات ورکړئ او یو مثال یې څرګند کړئ.

۳_ زده کوونکي دې د هېواد د پنځو شاعرانو او پنځو نثر لیکونکو نومونه او کتابونه پخپلو کتابچو کې ولیکي او په ټولګي کې دې یې واوروي.

۴_ ناسم ځواب نښه کړئ:

- لنډه کیسه د هنري نثر یو ډول دی.
- ناول د هنري نثر یو ډول دی.
- د اخبار خبر د هنري نثر یو ډول دی.

۵_ زده کوونکي دې په څلورو ګروپونو ووېشل شي. متن دې په چوپه خوله ولولي. لومړۍ ډله دې نومځري، دویمه دې نومونه، دریمه دې صفتونه او څلورمه ډله دې د (ی) ګانو ډولونه پیدا او په ټولګي کې ولولي.





زده کوونکي دې پخپله د یو هنري نثر په اړه یوه نمونه راوړي او بله ورځ دې یې په ټولګي کې واوروي.



# وییپانګه

## ((الف))

**اتل:** زړور، تکړه، غیرتمن، قهرمان، پهلوان
**احاطه:** غولی، انګړ، خلوړدېوالي
**احتمال:** شونتیا، امکان، کېدلو والا
**ارقام:** عددونه، نښې، رقوم
**اسایش:** هوساینه، سوکالي ارامي
**استبداد:** تېری، ناروا، سختي، ظلم، تجاوز
**استدلال:** دليل ويل، د اسنادو او شواهدو راوړل
**استفهامي:** پوښتنيز، چې پوښتنه کوي
**اعلی:** تر ټولو لوړ، ډېر لوړ
**افسانه:** نکل، خيالي کيسه، داستان، حکايت
**افسر:** منصبوال، بريدمن، تورن او ...
**اقتباس:** اخيستنه، ګټه اخيستنه، دکوم عبارت نقلول
**اقتصادي:** مالي، مادي، وټه ييز
**ام:** مور، اصل ماده
**امتيازات:** برتری، لوړوالی
**انا:** نيا، بوډۍ
**انتقاد:** نيوکه، نيمګړتياوې ويل، عيب په ګوته کول
**انحطاط:** لوېدنه، راټيټېدنه، ځوړتيا
**انزوا:** ګوښه والی، يوازېوالي، چپله کېدنه، ګوټ ناستي
**انصراف:** تېرېدنه، لاس اخيستنه، مخ ګرځونه
**انعکاس:** غبرګون، ازانګه
**انځور:** عکس، تصوير، څېره په رسامي ډول
**اوهام:** بې ځايه سوچونه، ډار، وهمونه
**اړو دوړ:** جګړه، جنګ، ګډوډي، شخړه
**اړين:** ضروري، حتمي

## ((ب))

**برپا:** پېښ، رامنځته، پورته
**بلواکي:** د بل تر واک لاندې، د خپلواک ضد
**بهرور:** برخمن، مستفيد، فيضياب
**بورجل:** کور، استوګنځی
**البوم:** د انځورونو ټولګه، د عکسونو مجموعه، د يو ډول شيانو مجموعه
**بڼه:** څېره، شکل، قواره، رنګ
**بېلني:** بېلوونکي، جلاکوونکي، ډش (ـ)
**بېګم:** بي بي، مېرمن، ښځه

## ((پ))

**پاسلل:** سپارل، حواله کول، نېکي کول
**پاسلي:** سپاري، حواله کوي
**پايله:** نتيجه، خاتمه، پای
**پايېدل:** پايښت، ژوندی پاتې کېدل، اوسېدل، ژوندکول
**پرهېزګار:** متقي، تقوادار
**پلازمېنه:** د ناستې ځای، مرکز، پايتخت
**پلاټ:** دکيسې يا ډرامې لومړی طرح چې د ليکوال په ذهن کې رامنځته کېږي
**پلوي:** سمتي، لوري ته منسوب
**پوخ لاس:** ښه مهارت، ډېر مهارت، قوي لاس، پوره تجربه

## ((ت))

**تأثر:** اغېز، اغېزمنل
**تالنده:** تنا، ګرزا، د اسمان غرهار
**تأمين:** برابر، مهيا، خوندي
**تاند:** تنکی، نوی، تازه، وده کوونکی
**تاوتريخوالی:** زور زياتی، بد چلند، اخ او ډب، خشونت
**تخيل:** خيال او تصور، په ذهن کې د يو شيز انځور



**تدوین:** راټولونه، ترتیبول، سمون
**تسکین:** تسلي، ارامي، اسودګي، ډاډ
**تکول:** ترکول، خوځول، لکه د غوړ خوځول
**تلپاتې:** تل پایند، تل ژوندی، همېشنی، مدام
**تلوار:** بېړه، تونديي، تادي
**تمایلات:** لېوالتیاوې، میني، رغبتونه
**تمبل:** چمبه، چنبه، داریال، دربه، داربه
**تمسخر:** ملنډې، پیشارې، پچموزې، مسخرې
**تمنا:** هیله، امېد، ارزو
**تنبیه:** ویښونه، بیدارونه، پوهونه، اګاهي
**توکی:** څیز، شی، ماده

## ((ټ))

**ټیپیک:** مشخص، ځانګړی، نمونه یي
**ټکر:** ډغره، ټینډک، جنګېدل

## ((ج))

**جانشین:** ځای ناستی، قایممقام
**جرس:** ګونګرې، ګینګرې، غړاوه، جړنګانې، زنګوله.
**جوګه:** وړ، لایق، موزون

## ((چ))

**چارواکی:** واک واله د چارو واکمن، مامور، د منصب څښتن
**چلند:** خوی، سلوک، کړه وړه، تګ راتګ

## ((ح))

**حرب:** جنګ، جګړه

## ((خ))

**خشخاش:** کوکنار، دکوکنارو تخم
**خلف:** ځای ناستی، اولاد، وروسته پاتې شونی
**خوشامنګر:** چاپروس، چاپلوس، غوړه مال
**خوځښت:** حرکت، نهضت، غورځنګ
**خړوب:** پڼول، اوبونه، اوبه کول

## ((د))

**دربان:** دروانچي، څوکیدار، د وره ساتندوی
**درناوی:** درنښت، قدر، عزت
**دُره:** متروکه، قمچینه، شلاق
**دریځ:** د درېدو ځای، منبر، لوړ ځای، موقف
**دستې:** غونچې، ګېډۍ
**دقت:** ځیرنه، پاملرنه، توجه
**دردانې:** مرغلرې

## ((ذ))

**ذاتي:** ځاني، اصلي، خپل، شخصي
**ذوق:** خوښه، شوق، طبع

## ((ر))

**راز:** پټه خبره، سِر
**راشدین:** دیندار، متدین، په سمه لار روان (راشدین خلفا)
**رحلت:** وفات، تلنه، تګ، مړینه
**رزمي:** جنګي، حربي، د جنګ
**رغاونه:** جوړونه، ابادونه، سازونه
**روایت:** نکلونه، کیسې، راپاتې خبرې، د چا د خبرو نکلول
**روحاني:** مذهبي لاربنود، پارسا، معنوي شخص
**روحیات:** مورال، وضع، وضعیت اروګانې
**روزل:** پالل، تربیه کول، ساتل
**ریاضت:** زیار، هڅه، کوښښ، د نفس پاکولو لپاره




رېږ گالنه

## ((ز))

**زهير:** خواشيني، خپه، ناتوانه، کمزوری، کړېدلی

## ((ژ))

**ژورناليستيک:** هغه ليکنې چې د چاپي، راډيويي او تلويزيوني خپرونو او رسنيو لپاره کېږي.

**ژوی:** ساکښ، ژوندی سری، ذیروح

## ((س))

**ساعي:** هڅاند، زيارگالی، کوښښي

**سپما:** زيرمه، زخيره، پاسره، بچت

**سکوت:** چوپتيا، قراري، ځنډ، وقفه

**سکون:** ارام، درېدنه، چوپتيا، غږوندی، ځای پر ځای کېدنه

**سمسور:** ښېراز، شين، زرغون

**سناريو:** هغه کيسه چې د فلم او ډرامې لپاره پر کاغذ ليکل کېږي.

**سود:** تسل، ډاډ، خاطر جمعي، تسکين

**سون:** سونګ، سوځېدل، د سوځولو

**سوېلي:** سهيلی، ملګري، همزولي

**سيلاني:** ګرځندوی، سياح، ننداره‌چي

## ((ش))

**شغل:** دنده، بوختيا، وظيفه، کسب

**شفاهي:** ګړنی، په خوله، د خولې، په يادو، د خولې خبرې

## ((ښ))

**ښکالو:** د ښېو اواز، پسپسي، غوږی، کشهار، ځپهار

**ښکېلاکګر:** استعمارګر، استعمار چي، نيواکګر، بندوونکی

**ښکېلاک:** نيواک، استعمار، بند، راګېر

## ((ص))

**صادر:** لېږل شوی، څرګند، پېښ شوی، ترسره شوی

**صحنه سازي:** صحنه جوړونه، منظرکښ

**صنعت:** جوړېدل، سازېدل، جوړشوي شيان، سامانونه، وسايل

**صوفي:** پاک نفس، تزکيه، د تصوف د طريقت پيرو، د وړينو جامو اغوستونکی

## ((ع))

**عابد:** پرهېزګار، متقي، تقوادار، عبادت کوونکی

**عارض:** عرض کوونکی، شکايت کوونکی، حق غوښتونکی

**عارف:** صوفي سالک، خدای ﷻ پېژندونکی، پوه، هوښيار

**عالي:** لوړ، شريف، محترم

**عواطف:** احساسات، جذبې، ولولې، مهرباني، الطاف

## ((غ))

**غمېدل:** خواشينېدل، خپه کېدل، په غم کېدل

**غورځنګ:** خوځښت، نهضت

## ((ف))

**فدا:** ځار، جار، واری، قربان

**فرمان:** د واکمن ليکلی حکم، د ولسمشر حکم، اجازه، د ولسمشر امر په ليکلي بڼه

**فضيلت:** غوره والی، ښېګڼه، برتري

**فطرت:** طبيعت، پنځ، پيدايښت، خلقت

**فعال:** کارند، بوخت، لاس په کار

**فقه:** پوهه، فهم، پر یو څه خبرتیا، د دین د ارکانو او احکامو علم.

**فقید:** ورک، له منځه تللی، مړ، له لاسه وتلی

**فن:** هنر، طریقه، مهارت، کسب

((ق))

**قلنګ:** د ملنګ نذرانه، باج، کلنګ

((ک))

**کافرستان:** دکافرو ځای، دکافرو وطن

**کاندید:** نوماند، ولاړ، داوطلب، نامزد

**کرکټر:** هغه شخص یا لوبغاړی چې دکیسې لیکوال یې دکیسې د پیښو د بهیر پر مخ بیولو لپاره ټاکي.

**کره کتنه:** نقد، سم قضاوت، یوه شیز ته اصلاحي کتنه

**کروندګر:** بزګر، دهقان

**کسات:** غچ، بدل، انتقام

**کشف:** موندنه، لوڅونه

**ککړتیا:** چټلېدل، ګنده کېدل، لړلي کېدل

**کونجکه:** کنجکه، د صدف پوخ، ګوجی

**کوټلتیا:** پوخوالی، مضبوطتیا، محکمتیا، درنښت

((ګ))

**ګلشن:** ګلبڼ، د ګلانو باغ، ګلباغچه

**ګهواره:** زانګو

((ل))

**لامل:** سبب، علت

**لرغونی:** پخوانی، لرغون، قدیمي

**لطافت:** نرم والی، ښه والی، سپېڅلتیا، نزاکت، ښکلا

**لقب:** هغه نوم چې د یوه ځانګړي صفت له امله پر چا ایښودل شوی وي.

**لېوالتیا:** لېوالتوب، مینتوب، هیله مندي، ارزومندي

((م))

**مبارزه:** هڅه، زیار، جنګ، جګړه، شخړه

**متاع:** مال، اسباب، پانګه

**مجرب:** ازمایل شوی، تجربه شوی

**مجلي:** جلوه ګاه، ښکاره کوونکی

**محاوره:** خبرې اترې، مکالمه

**مخترع:** نوی راایستونکی، کشفوونکی

**مرام:** مقصد، مطلب، هیله، مراد

**مرکچیان:** مرکوال، مرکه کوونکي، جرګه مار

**مرکه:** جرګه، شورا، مجلس، ناسته.

**مزمن:** اوږد مهاله، د اوږدې زمانې، د ډېر وخت

**مستقل:** خپلواک، ازاد، خپل اختیاره

**مستند:** منل شوی، باوري، د اصل له مخې، د اعتبار وړ

**مسمومیت:** زهري کېدنه، په زهرو ککړېدنه

**مشال:** مشعل، ډیوه، څراغ

**مشاور:** سلاکار، مشوره ورکوونکی، نظر ورکوونکی

**مشرتابه:** د مشرتوب، مشریزه، سرغندویه، د مشرۍ

**مصنوعات:** لاسي او ماشیني تولیدات، جوړ کړی شوي، تولید کړی شوي

**معاصر:** اوسنی، همعصره، اوسمهاله

**معتاد:** روږدی، عملي، په نشه اخته

**معراج:** پورته، اوچت، لوړ، اسمان ته د حضرت محمد (ص) ختل.

**مقبول:** منل شوی، ښکلی، ګران

**مقرب:** نژدې، خپلوان، دوست، خاص ملګری

**مل:** ملګری، سره یوځای

**مناجات:** دعا، التجا، هغه بیان چې خدای ﷻ ته

پکي زاري شوې وي
**منثور:** په نثر، له نظم پرته
**منظر کښي:** منظر کښنه، په کلمو کې د یوې
صحنې انځور
**منظوم:** په شعر، په نظم، نظم شوی
**مهذب:** متمدن وړ، بې عیبه، تو یل شوی، اصلاح
شوی، سم شوی
**موخه:** هدف، مقصد،
**میل:** لېوالتیا، اشتها، اشتیاق، مینه
**مرو:** مېره، مېرنی، سړی، جمع یې مېرونه،
لهجوي، (د مرو وده له تا ده)
**مېشت:** دېره، ځای پر ځای، استوګن

((ن))

**نابود:** له منځه تللی، ورک، محوه، نشت
**ناشوني:** نه کېدونکی، نه کېدلو والا، ناممکن
**ناورین:** غم، خپګان، ویر، ماتم
**ندا:** غږ، اواز
**نظامي:** پوځي، عسکري
**نغښتل:** راټولول، سره ودل، سره یو ځای کول
**نګین:** غمی، قیمتي کاڼی
**نمو:** وده، لوېدنه، غټېدنه
**نهضت:** خوځښت، غورځنګ، تحریک
**نومیالی:** نامتو، مشهور
**نومیالي:** نامتو، مشهوره
**نومځری:** ضمیر، هغه کلمه چې د نامه استازیتوب
کوي
**نیاز:** اړتیا، حاجت، ضرورت
**نیله:** ریښه، ځېله، جرړه، وله
**نېب:** پرله پسې، بیا بیا، مکرر، مسلسل

((و))

**واکمن:** واکوال، واکدار، اختیارمند
**وده:** ډېرښت، تکثر، زیاتوالی
**ورشو:** خړ ځای، شین او سمسور ځای، ښېرازه
چاپېریال
**وژغني:** وزغني، د وزو وېښتان
**ولوله:** جذبه، احساس، شور و شوق
**ووړ:** کوچنی، وړوکی، کمکی، وزکوټی

((هـ))

**هسک:** لوړ، اوچت، اسمان
**همراز:** راز شریکی، نژدې ملګری، خاص ملګری،
خوالهګر
**همرکاب:** د رکاب ملګری، د لارې ملګری، د سفر
ملګری
**همسفر:** د سفر ملګری
**همسر:** سیال، برابر
**همفکر:** همخیاله، د یوه فکر والا، د یوه فکر
خښتنان
**هنر:** فن، کمال، فني مهارت، کسب
**هنګامه:** شور، غوغا، ځوږ

**هنر:** فن، کمال، فني مهارت، کسب
**هنګامه:** شور، غوغا، ځوږ





## اخځلیکونه:


۱_ په افغانستان کې صنایع او په ملي اقتصاد کې د هغو ونډه، پوهنوال محمد بشیر دوديال، د اریک گرځنده کتابتونو اداره، ۱۳۸۲ کال.
۲_ پښتو د پنځم ټولګي لپاره، نورالحبیب نثار، سید محی الدین هاشمي، بیفیر د افغان مهاجرو لپاره زده کړې، ۱۳۷۵ کال.
۳_ اوسني لیکوال درې ټوکه، عبدالرؤف بېنوا، دولتي مطبعه کابل ۱۳۴۰، ۱۳۴۱، ۱۳۴۶ کلونه.
۴_ گیتانجلي، رابندر ناتهـ ټاگور، د بېنوا ژباړه، بېنوا فرهنګي ټولنه درېم چاپ ۱۳۸۳ کال.
۵_ د بېنوا شعري کلیات، هېواد نشراتي ټولنه _ کوټه، ۱۳۸۳ کال.
۶_ د ښکلا وږمه، پوهاند صدیق الله رښتین، پښتو اکاډمي پېښور پوهنتون، ۱۹۹۷ کال.
۷_ یاد فریاد (پښتو _ دري اشعار)، سید شمس الدین مجروح، د افغانستان د مجاهدو لیکوالو ټولنه _ پېښور ۱۹۸۵ کال.
۸_ گنج پښتو، مولوي احمد د تنګي.
۹_ د پښتو ادبیاتو تاریخ اوسنۍ دوره، پوهاند ډاکټر زیورالدین زیور، د ساپي د پښتو څېړنو او پراختیا مرکز _ پېښور ۱۳۸۵ کال.
۱۰_ فرهنگ ادبیات جهان، زهرای خانلری، شرکت سهامی انتشارات خوارزمی _ ۱۳۷۵ کال.
۱۱_ د پښتو نثر هنداره، پوهاند صدیق الله رښتین، یونیورسټي بک ایجنسي _ پېښور.
۱۲_ د رحمان بابا کلیات، حنیف خلیل، دانش خپرندویه ټولنه، ۱۳۸۴ کال.






۱۳_ د الفت مرغلرې، د شهرت ننگيال په زيار، دانش کتابخانه، پېښور دريم چاپ، ۱۳۷۵ کال.
۱۴_ ليکوالي املاء او انشاء، گل پاچا الفت، پښتو ټولنه، ۱۳۳۹ کال.
۱۵_ د ژوند پلوشې، پوهاند صديق الله رښتين، يو نيورسټي بک ايجنسي، پېښور، ۱۳۷۴ کال.
۱۶_ زاهد پښتو _ پښتو سيند، عبدالقيوم زاهد مشواني، دانش خپرندويه ټولنه.
۱۷_ پټه خزانه، محمد هوتک بن داود، د پوهنې وزارت دوهم چاپ ۱۳۳۹ کال.
۱۸_ د پښتو ادبياتو تاريخ، لرغوني او منځنۍ دوره، زلمی هېواد مل دانش خپرندويه ټولنه، لومړی ټوک، ۱۳۷۹ کال.
۱۹_ خواږه نعتونه، فقير محمد عباس قادريه، يونيورسټي بک ايجنسي، لومړی چاپ ۱۹۷۷ کال.
۲۰_ پښتو غږ پوهنه او ويي پوهنه، پوهنوال محمد صابر خېشکی، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه _ جرمني، ۱۳۸۰ کال.
۲۱_ څه ليکل يا ليکپوهه، گل پاچا الفت، د اتحاد مشرقي مطبعه، جلال اباد ۱۳۲۸ کال.
۲۲_ ادبپوهنه، سيد محی الدين هاشمي، د اريک گرځنده کتابتونونو اداره، ۱۳۸۱ کال.
۲۳_ پښتو روزنه، عبدالرؤف بېنوا، د پښتو څېړنو نړيوال مرکز ۱۳۵۷ کال.
۲۴_ د پښتو ژبې لنډ گرامر، سيد محی الدين هاشمي، د اريک گرځنده کتابتون، ۱۳۸۳ کال.
۲۵_ عمر بن عبدالعزيز، زين الله واحدان، نيو کابل کتاب پلورنځی ۲۰۰۷ م کال.
۲۶_ اوبه او چاپېريال، پوهاند حسن يار.
۲۷_ لرغونپوهنه، پوهنوال محمد رسول باوري، د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه _ جرمني ۱۳۸۰ کال.
۲۸_ پښتو نحوه، پوهندوی ډاکټر زرغونه رښتين زېور، د لوړو او مسلکي تحصيلاتو وزارت، د کابل پوهنتون، د ژبو او ادبياتو پوهنځی، ۱۳۸۳ هـ.ش. _ ۲۰۰۳ م. کال.